# دا جمل خټک نور چاپ شوی کتابونه

۱ د غیرت چغه (نظم)

۲ ګلونه تکلونه (نظم)

۳ ګل پرهر (نظم)

۴ دا زهٔ پاګل وؤم؟ (نثر)

۵ قصه زما دادبي ژوند (نثر)

۶ جلا وطن کی شاعری (اردو نظم)

ناشر: یونیورسٹی بُک ایجنسی - پېښور

# دکتاب پېژندګلوي

دکتاب نوم : افغاني ننګ

ليکوال : اجمل خټک

خطاط : هاشمي

خپروونکے : يونيورسټي بُک ايجنسي، پېښور

دخپريدو نېټه: (دومبےځل) نومبر- ۱۹۹۷ء

شمـــير : (۱۰۰۰) زر ټوکه

نيوز بيه ( 50 ) روپۍ

لائبريري ايډيشن : ۱۰۰

بسم اللہ

دلته نه تمهید لیکم، نه دیباچه،
نه وضاحت لیکم، نه معذرت
نه اِنتساب لیکم او نه نورڅه....

بس دا یوه ټپه، لنډۍ یا مصرۍ
لیکل غواړم:

یو ځلې بیا په دے لار راشه
د سحر باده غرمو مړاوی کړل ګلونه

اجمل خټک

## د افغان په ننګ مې وتړله توره
## ننګیالے د زمانې خوشحال خټک یم

ای خدایه! یا دے شعر کښے د عمل معنے واچوه چه د **افغان** خاوره او وینه د **ننګ توره** پیدا کړی.

**یا**

دا سے اشعار د دُنیا د مخه ورک او د افغان د حافظے نه محو کړے، چه بے ځایه غرور او بے معنے نشه یئے ووځی، ځان او جهان او پیژنی.

**او**

**یا** که دا دواړه وی، نو د دوئ دوینے او د ماغ نه د تربګنئ او نفاق بوئیں او باسے او د رور ولئ او اتفاق مینه پکښے راوټوکوے چه یو رور او یو کور شی او دُنیا په مخ د جنت هسے تابوبی نه دځان او جهان د پاره یو نوے جنت جوړ کړی.

(آمین)

# فهرست

# لالیشکو

د پېښور جېل کښې څه دوه زره ۲۰۰۰ قیدیان وو ـ خو په ټولو کښې ښکاره یو ښکلې ځوان افغان قیدي و چې د جېل هرې احاطې، بارک، لنګر، کارخانې، بي کلاس او پاسي ګاټ ته ورتلې شو او اکثه د نورو قیدیانو دده په ګرځېدو راګرځېدو هیڅ بندیز نه و. دغه شان دده نه هیڅ مشقت نه اخیستې کېده. بلکه د جېل د سپرنټنډنټ (رئیس) نه واخلې تر هر سپاهي او هر قیدي هرچا ده سره توقې ویشتې کولې. هرچا به چې اولیدو آواز به یې پرې او کړو "لالیشکو څنګه یې". او لالیشکو به په غوږ لاس کېښو په کندهاري طرز کښې به یې یوه ښکلې ټپه پورته کړه بیا به یې ګډا شو او په مخه به یوې خوا ته لاړو.

لالیشکو سور سپین ښائسته زلمې و. په تندي یې شین خال و. سترګې یې د پوزې نه ښائسته وې او پوزه یې د سترګو نه. ټال تندے او ټوکمار سړی.

په قد میانه، نهٔ رنګ نهٔ منډرے - په وجود سبۀ مزے او په خوئ بوئ څوک سبۀ خانداني. خو د سرنه تر پښو بربنډ-صرف فرض پټ او په ژوندژواک لیونے، بالکل!

په غاړه به یئے تر زنګونو پورے اوږد زرچیرو، د سکرټو د خالي ډبو او الا بلا امیل غوندے اچولے و - بل يئے د جیل ټکټ هم په غاړه کښے اويزان کړے و. په اوږ به یئے په یوه شلیدلی بورئ کښے کاغذونه ماغذونه او ترخ کښے دشلیدلو زړو جامو غوټه، په سر د اوڼو دیاړو تاج او لاس کښے یو د غوړو خالي ډبے چه دهٔ به غږ ولو او کوچئ سندرے به یئے ورسره ویلے. داو. الالیشکو!

خو په دے حالت کښے دومره عجیبه سړے و. چه جیل کښے داسے کس نه و چه هغه به الالیشکو سره کپ لګولو نه خوند نه اخستو. سره ددے چه ددے لیونی خبرو کښے هیڅ ترتیب، تسلسل یا خاص مضمون یا موضوع هیچاته نه معلومیده - خو دده اونو بوتو، هغه دغه، یوغږ بل غږ او کله نا کله متلونه، مصرعے او ورسره حرکات د هر چا خوښیدل او هر چا به غوښتل چه دے ورسره کښینی، کپ وهے ووائی او خندا وکړي.

حو لا ئیلشکو د هیچا سره نه کښیناستو ، نه ایسار یدو او
نه مشغولیدو . هوله ورځ به اخوا دیخوا بے نیازه او
بے پروا گرځیدو او د شپے به کوزه حوالات کښے لسم نمبر
بارک ته د هغه حوالاتیانو سره بندیدو چه د پیښور
ښار نه به جوارئ ، نشه ، غلا ، جیب و هلو ، پیښے یا
ځیلئ پیټولو یا بل ډیر بدنام جرم کښے راوستي شوي وو-
خو وائي چه لا ئیلشکو به هغه بارک ته صرف او ده ؤ کیدو
ته تلو او د بارک د بندیدو سره به تر نمر خاتۀ او ده و،
ځکه چه ټوله ورځ به په گډیدو او گرځیدو سره ستړے
شوے وو- ماته یوه ورځ د هسپتال ډاکټر اووئیل چه
"لالیشکو لیونے دے خو غرق خوب یئ د لیونو نۀ دے."

عجیبه داوه چه بغیر د لنگر د ملازمانو او مشقتیانو
نه بل چا ته معلومه نه وه چه دے څۀ خوری ، څومره خوری
او کله خوري - ځکه چې ده هیچرته د هیچا سره خوړل
ښکل نه کوّل . چه چا به ورته اووئیل راشه څۀ اوخوره
یا اوڅښکه، نو ده ؤ به چیغه کړه "لا لیشکو- الا - الا- الا"
او به منډه منډه به د هغه ځایه اوتښتیدو .

لالیشکو به هر سحر د جیل لویئ دروازے سره ولاړو
او چه آزاد شوی قیدیان به کور ته تلل ، نو ده به ورته خندا

ګډا او ټپه کوله - چې هغوئ به اوو تل نو ده به په دواړه لاسه د جيل لوړے تمبيے ډبول شروع کړل او چغه به يې کړه " يه! صيب! چه دا ټول کور ته ليږے نو يوه ورځ لا ليشکو هم او ليږه کنه "

زه چه يې پېښور جيل ته بوتلم - څه وخت م تير کړو او کتابونه م پيدا کړل - نو د خپلې چکئ (اتلسمے) به وړاندے به م کمبل واچولو - په کمبل به ناست وم کتاب به م کتو .

دغه وړځو کښے لا ليشکو جيل کښے سنه مشهور شوے وو . د ورځے به څوڅوځله مخامخ پاسی ګاټ ته د پاسنئ قيديانو ته راتلو - هغوئ ته به يو يو خند يدو اوګډيدو . ما اوځل دے دلته اوليدو چه خپل دټيم (ټيين) ډيلے يې سنه په سُر غږولو دا ټپه يې کوله :

په بلئ روڅه ګله روڅه!

باد دِ زلفو بوئيں راوړی تازه پرے يمه

په بلئ روڅه !

او دے ټپے سره ډېر په خوند خوند داسے ګډيدو لکه فنکار !

ما چه ورته اوکتل نو سړے په ټول کړه وړه ليونے دے خو د ډبلی ساز او د ګډا دا منظم سبکلے انداز يې راته د

روغنو سنکاره شو . فکر ورته یوړم او په تماشه یې شوم. لالیشکو لږ وخت هلته تیر کړو بیا زما لوری ته رارowan شو چه ماته راورسیدو نو مخامخ را اودریدو - یوه لحظه یې ماته اوکتل - نوے قیدی ورته ښکاره شوم نو زما جاج یې واخستو او زر یې د بلی ته ټنګ ورکړو - په ګړا شو او بیا یې دا ټپه اوویله :

یو دِ سالو په نولس[19] ګلـــه !

بل دِ زیړی چار ګُل ته بنګ ورکړي دینه

د دے نه پس زه لالیشکو ته متوجه شوم او هر څیز به چه په نظر راغلو- نو سبه به م خارلو او هر حرکت به م یې تللو. تر دے چه رو رو م ځان سره بلد کړو ـ خو صرف دومره چه ما سره یې تګ راتګ د نورو قیدیانو نه ډیر شو ـ او بل چا سره به نه کښیناستو ما سره به لږ کښیناستو او د خپل ترخ د پنډوکي نه به یې ګنډود کاغذونه را ایستل او یو یو به یې هسے کتو بیا به یې پنډوکی کښے سمبالولو . ما به ورته د دهٔ د خوشحالولو دپاره د افغانستان د تاریخ ، سبار ونو ، شاعرانو او مشهورو شخصیتونو خبرے کولے . دومره پوهیدم چه خبرے م اوری خو څه تاثر پرے نه ښکاري ـ صرف یو ورځ یې د خولے نه اوختل « خوشحال خټکه - په درنو دروند یه سپکو سپکه » د دهٔ دے وینا زما دا انداز پخه کړه چه

لالیشکو لیونے نه دے .

دوه درے میاشتے پس چې اوړے (دگرمۍ موسم) را تللو نو لالیشکو ماته اووے آغا ماته نکریزے راوغواړه . ما ورته اووئیل نکریزے څه کوے ؟ هغه اووئیل چه په ځان تیم چه څومره سخته شي او دگرمۍ مقابله اوکړي.

ما چه دده دا خبره واوریده نو خوشحال شوم چه د لالیشکو راسره یارانه جوړه شوه ، ځکه چه ده نه تراوسه دچا نه څه غوښتی وو- نه څه اخستی وو - بله دا چه خبرو کښے لیونتوب نه وو- دا په ما اعتماد و . ده داخبره کوله چه دے کښے ماته دوه قیدیان راغلل او ددے سره دے یا ځید و- په کمه اشو او په کوچې طرز کښے یئ دا لنډئ اووئیله :

راځه راځه چه لنډۍ وایو

لنډۍ لاسبے دی دزړه غم غلطوینه

په دغه ورځو کښے ددے جیل سپرنټنډنټ شیخ صاحب و - د شیخ صاحب ځوان زلمے ځوئ ناڅاپه وفات شو- نو دے ډیر خفه شو- دځوی دمرګ غم ډیر اوددرد ؤلو، نو زړه یئ نرم شو او رحم په کښے زیات شو- یوه ورځ چه په ګشت (دوره) راغلو او ماسره یئ لالیشکو ناست اولیدو- او

لالیشکو ورته یاخیدو سلام یې ورته اوکړو او ورته یې اوویل
«پلاره! یه پلاره! په ما به کله رحم کوې» په غاړه کښې
اویزان خپل دَ جیلخانې ټکټ یې ورته وړاندې کړو «یه
پلاره! چار دِ شم دلته امضاء (دستخط) اوکړه ـ ما
ایله کړه چه څُم کورته لاړشم ـ بال بچ ته به دِ ټول عمر
دُعا کوُم.» شیخ صاحب لالیشکو ته لاندې باندې په زیر
زیر اوکتل او یو لویې اسویلې یې اوکړو ـ روان شو ـ په
تلوتلو کښې یې څو ځله لالیشکو ته مخ را واړولو. زه پوهه
شوم چه دَ لالیشکو پلاره، پلاره کوُلو او بال بچ ته دَ
دُعا خبرې شیخ صیب ته خپل نژدې مړشوې ځوئ را
یاد کړو، نو اودردیدو او وغمیدو.

چه شیخ صاحب دَګشت نه واپس خپل دفتر ته اورسیدُ
نو ما پسې یې اردلی راولیږلو او دفتر ته یې اوبللم.

چه زه دفتر ته ورننوتم نو شیخ صاحب م په کرسۍ
ډیر زهیر داسې ناست اولیدو چه دواړه څنګلې یې په میز ایښې
وې ـ خپل مخ یې په دواړو لاسونو کښې نیولې وو ـ فکر ژن او
غمژن ناست وو ـ زما په لیدو یې سر را پورته کړو په هغه
کرسۍ باندې یې راته دکښیناستو اشاره اوکړه چه ده ته
مخامخ دَ میز خواته پرته وه. او بیا یې را نه پټوس اوکړو

چه "دے جیل کښې بل کوچے قیدی شته که بس دے یواځے دے؟"
ما ورته اووئیل صیب ددے نه خو به دچکر جمعه دار خبر وي.
خو چه زه څومره معلومات لرم - نو بل دا سے افغان نشته . ددے
جواب په آور یدو شیخ بیا فکر کښې ډوب شو . یوه لحظه غلے
(خموش) وو - بیا یې ماته اووئیل چه نن در یمه ورځ ده ،
دلته دجیل نه باهر یوه کوچۍ پېغله ناسته ده ، چه زه کور
ته ځم راځم نو دا ناسته وي او ځان یې په ځادر کښې سبه
کلک نغښتے وي . مونږ ډیر کوشش اوکړو چه دا ددے ځایه
پاڅو - خو هغه نه پاڅیږي - که زور ورسره کوو نو ښځه ذات
ده - سبه خبره نه ده . زما خپل زړه د بچې په مرګ ټوټل ټوټل
دے - ددے جنۍ سره زه زیاتے هم نشم کولے - دچمیږم او
ورته زیر یږم خفه کیږم . مونږ ټول افسران حیران یو چه
دا څوک ده - څه وایئ - څه غواړي او ولے دلته ناسته
ده . مونږ ډیر کوشش اوکړو خو دخولے نه یې هیڅ خبره
نه راوځي - زما یرے ډیر زړه سوځي خو حیران یم چه څه
ورسره اوکړم - زما کور واله هم دځوئ غم کښې غمژنه چه
ددے نه خبره شوے ده - نو ورته راغلے ده کوشش یې کړے
دے چه کورته یې بوځي ، خو دا ددے ځایه نه خوزي - زما
یرے ترس راځي نو وایم چه دلته ناسته یې نو ناسته دې وي

خو یو ملازم م ورته څوکیدار او دروله دے . زما کورواله د څوئي په ارواح حلوا ، پلاؤ ، پراټه او څه پاخه کړي نو دے ته یې راولیږي خو د دے سره پراته وی . د شپې ترے لږه څښنکه اوکړي او بس - ته څه وایې - دا څه قیصه کیدے شي "

ماچه د شیخ صاحب په نرمه اودردناکه لهجه دده داخبره واوریده ، نو زه هم فکر واخستم . د ډیر سوچ نه پس ما سره دا سوال پیدا شو چه داپیغله د لالیشکو سره څه تعلق خو نه لري؟ او دهغه نکل کښې خونه ده راغلې ؟ نو شیخ صاحب ته م اووئیل چه داسے نه وي چه ددے کوچۍ د لالیشکو سره کار وی ؟ شیخ صیب سمدستی جواب راکړو " ماچه وختی لالیشکو او لیدو او دا جینۍ م په ذهن کښې وه ، نو ما ته م دے زړه اووئیل چه " شوی ناشوی - ددے کوچۍ په دے کوچۍ کښے څه غرض دے . "

ماچه د شیخ صاحب د زخمی جذباتو اندازه اولګوله او دده زړه کښې د رحم دجوش جاج م واخستو نو سبه موقع راته سکاره شوه چه که د باهر ناسته مسافرے جونے او دجیل د ننه لیونی زلمی ترمنځه که څه وی نو د شیخ سیب د نرم زړه په وجه معلومیدے شي .

ما شیخ صیب ته اووئیل : « شیخ صیب زما زړه ته یوه خبره راغله و یې کړم ؟ هغه اووئیل «هو، هو ضرور یې اوکړه»
ما ورته اووئیل شیخ صیب ما ته معلومه ده چه خپل خوا ن زلمی ځوئ پسې خومره زهیر او غمژن یئ. د غه شان که دا دواړه خپلو کښې څه وی نو دوئ به هم یو بل پسې څومره دردمند وی ؟ که ته دا دواړه مخامخ کړې او د دوئ دیو بل به لید و لیږ ه تسله وشي .» ما دومره وئیلی ووچه د شیخ صیب بانه لامده شول او ما ته یې اووئیل ته کوشش اوکړه لالیشکو زما دفتر ته راوله او زه چکر جمعه دار دغه کوچۍ پسې لیږم .

ما لالیشکو په چکر کښې د اونی لاندې د لنګر په مشهیانو کښې په ګډا او خندا پیدا کړو او په چل ول م ورته اووئیل چه نکته راکړه چه صیب ته یې یوسم او ورته معافي واخلم، هغه امضاء (دستخط) اوکړې او ته ایله شې - ځی کور ته لاړ شې . او په دې بانه چه صیب درسره ښه کوي او تا کور ته لیږی - نو ته دا سې بربنډ مه ورځه - دا د هغه بےادبي او بےعزتي د ه . راشه زما جامې واچوه او ما سره د فتر ته لاړ شه » او بیا غونډے م ورته غوږ کښې اووئیل چه ځوک کوچۍ پنیله راځي ده - زمونږ انداز ه ده چه ستا څوک ده -

لیونی کیږه مه - رازه هغه به تا اووینی ته به هغه اووینې که واقعی ستا څوک وی نو ملاقات به او شی.» لالیشکو چه دا واوریدل - نو اول یې هیڅ نه منل اوس هرڅه منلو ته تیار شو - او ماسره د صیب دفتر ته لاړو.

په دفتر کښې هغوئی پیغله هم په دغه ډول خبرواترو آماده کړې وه او د صیب د دفتر کښې په ځمکه دیوال ته مخ کړې ناسته وه. چه زه او لالیشکو په دفتر ورننو تو او پیغلې د نقر څادر نه په یو سترګه لالیشکو او لیدو او د لالیشکو نظر په هغې پریوتو - نو دواړه بې اختیاره یو بل ته غاړه وتل. مونږ چه دا تماشا اولیدله نو رو رو بټول دفتر نه باهر اووتلو او هغوئی دواړه مو د ننه پریښنبول.

لږه لحظه پس پیغلې د دفتر ور لرې کړو او د لالیشکو سره راووتله او چلته چلته باهرنئ دروازې ته اورسیده د صیب په وینا دروازه پرانستې شوه اوکوځئ به ډوبه د جیل او د جیل د علاقې نه باهر اووته. چه څنګه یې دراتلو نه مونږ نه وو خبر چه څنګه راغلې وه دغه شان یې د تلو نه هم مونږ خبر نه شو چه څه شوه اوکوم خوا لاړه.

لالیشکو د جیل باهرنئ دروازې یورې د ننه ولاړ

پاتې شو. څه لحظه ولاړ و. بیا را روان شو او د توږ ـــ دروازې په ټمبېږي لوړې جیل ته ور ننوتو ، خود دې نه پس هغه بربنډ لیونی ، ګډېدونکی ، خندېدونکی ، سندرې ګډونکی لالیشکو نه وو. سنجیده ، خاموش ، فکرونو کښې ډوب لړ ماسره ، ډېر د پانسئ قید یانو سره او د هغې نه ډېر لائبرېرئ کښې ناست وو. نه یې چا سره خبرې کولې نه ډیر ګرځېدل. لالیشکو بدل شو. لالیشکو پاتې نه شو. یو نوځلن افغان قیدی پاتې شو. د جیل فضا یې د خندا ، نڅا او ټپو نه خالی کړه. د زړهٔ او ذهن زخمونو او د اغونو سره مشغول شو.

زه تر اوسه نه شم پوهیدې چې شیخ صیب په کوم قانون او کوم ترکیب لاره جوړه کړه او څو ورځې پس یې لالیشکو ته د حکومت نه حکم وا خستو چې د جیل نه دې باهر شي ، دا فغانستان پولې ته دې او رسولې شي او هلته دې ایله شي.

مالا سحر ورزش کولو چې یو جیلر راغې ما ته یې او وئیل لالیشکو چرته دې؟ پولیس ور پسې راغلي دي. بوتلې یې. او هغه لیونی به چرته ګډیږي یا خندیږي ، په دې کښې هغه رابنکاره شو. خپلې زړې افغانئ جامې یې اغوستي دي او په پانسئ ګانو را شروع شوې دي. دیو یو قیدی نه اجازت اخلي

چکر جمعه دار ورسره دے هغه یئ را دکی او دے هریوته سلام
هم کوی ، لاس هم ورکوی د رهائی دعا هم ورته کوي .
چه ما او لیدو نوزه او جیلر ور روان شو او هغه تر ما را
رسیدو نه وړاندے زه ور اورسیدم ورغاړه وتم . د رهاکیدو
مبارکی م ورکړه او په مخه ښه م ورته او وئیل . هغه یوه
لحظه ماسره خاموش ولاړو ، بیا ماته په دوئم ځل را
غاړه وتو او چه روان شو نو ویئ وئیل :

اے د زمانے باده ځه په خنیله لاره ځه !
ځه ځه په قلاره ځه مه چیږه ما مه چیږه !

* * *

اوس پوهه شوم چه لالیشکو څوک تعلیم یافته افغان دے
زما اشعار یئ لوستی دی او ما پیژنی ، نو ځکه ماته د نورو مقابله
کښے نن دے نن دے کیدو او ماسره کښیناستو .

زه هم د جیلر ، چکر جمعه دار سره د ده په جلب کښے تر
گیټ ( دروازے ) پورے ورغلم - چه لالیشکو د نورے لوئے
سپیرے دروازے نه په وړه تنکه تمبرۍ وتلو نو په ټول
جیل یئ نظر اوزغلولو او دا بیته یئ اوکړه او لاړو :

د جیلخانے د منځ چناره
مولا دِ گل کړه چه قیدیان دِ بوبوینه

خبره نږدې نږدې کېږي او وخت رو رو تېرېږي. په دې واقعاتو څه شل کاله شوي وو. زه افغانستان کښې وم موږ د کابل نه کندهار ته روان وو. قلات غلزي کښې مو موټر کښې تېل اچول غوښتل چې د پټرولو په پمپ کښې اودرېدو نو زموږ نه مخکښې یو موټر تېل اچول. زموږ به لېد و د موټر نه یو ښکلې ځلمې را کوز شو او نېغ موږ ته راغې او په ماړې ډېر په مینه سلام واچولو. زه هم د ګاډي نه ورکوز شوم لاس مې ورکړل او علیک سلیک مې ورسره اوکړل. سړی ښه یوړ پي دریشي (سوټ) اچولې ده. ښه سور سپین د پوخ عمر یو تندرست پښتون دے. ماته مخامخ ولاړ دے. نېغ نېغ را ته ګوري. سترګې یې ځلېږي اوشونډې یې داسې رپېږي ښودې چې زه پرې سم نه پوهېږم چې مسید و ته حوړ ېږي که را بار یدلی جذبات قابو کوي که څه وئیل غواړي خو وئیلے نه شي. زه یې کړه وړه او دے حالت ته حیران یم چې دا څوک دے او ولې داسې عجیبه خاموشۍ کښې ډوب ولاړ دے. آخر یې څه لږ ه لحظه پس خوله پرانسته او ما ته یې اووئیل خټک صیب! زه دې اوپېژندم؟ دده په وینا ما نور هم په غور، زیر او حیرت ده ته کتل شروع کړل. سترګې مې پرے ډېرے

خوږېږي خو ذهن ته مې نه راځي چې څوک دے . په دے
وخت کښې مې دهغه په تندي تت شوے خال په نظر راغے
او چې نور مې په فکر فکر دهغه مخ ته او پوزے ته اوکتل
نو د پيښور جيل ليونے لاليشکو را ياد شو او ددے سره
مې هغه ته اووے " ته لاليشکو خو نه يې "؟ هغه راغاړه
وتو او سينے سره يې جوخت زور را کړو . راته يې اووئيل
د پيښور جيل لاليشکو او ددے ځاى حسن ! او ددے
وينا سره يې موټر کښې ناستے بي بي ته آواز وکړو " يه پشمينے
زر راشه دادے هغه خټک صيب " او ددے آواز اوريدو
سره موټر کښې ناسته زنانه راکوزه شوه او په منډه تر ما
را ورسيده او راتلو سره زما په پښو پريوته . چې ماورته
اوکتل نو هم هغه کوچۍ وه چه د پيښور جيل د شيخ صيب
دفتر کښې مې ليدلے وه . خوهغسے غوټۍ نه وه . وخت غوړولے وه
رښتيا وائي چه غر په غر نه ورځي او سړے په سړي پيښيږي !

حسن (لاليشکو) او پشمينه (کوچۍ) هم دے ملاقات ته
حيران وو او خوشحال ولاړ دي. زه هم د دوئ په ليدو خوشحال
او د خدائے کارونو ته حيران ولاړيم او ماسره د قلات گورنر
او زما ملگري هم يو بل ته گوري چه داڅه معامله ده .

حسن ماته اووئيل چه په اتريش (ويانا) کښې فوجي اتاشيم

او دا هغه مسافره کوچۍ ده چه اوس زما میرمن ده . زه هلته
خبر شوے وم چه تاسو افغانستان ته راغلی یئ . زه اوس سردار
داؤد خان رابللے یم او ډیر زر اطوریش ته او هلته نه فرانسے ته
روان یم - راتلونکو میاشتو کښے دلته وزارت خارجه کښے
وظیفه راکوي - بیا راځم نو کابل کښے به سره زړے نوے
وایو . زه به درته خپله قیصه کوم چه څنګه د پښبور جیل
ته رسیدلے وم - پشمینه (کوچۍ) به درته خپل حال وائی چه
په کوم ډول زما نه خبره شوے او پښبور جیل ته راغلے وه او ته
به راته خپل بیان کوے چه څه وو څه او شول - څنګه افغانستان
ته راغلے او څنګه به واپس ځے .

یوه شیبه هلته ولاړ وو ، دیو بل په لیدو نه مړیدو
خو آخر هغه د کابل په لور او موږ کندهار ته روان شو .
په دے ارمان جدا شو چه کابل کښے به ډیر ډیر وینو کوره . ولے
افسوس چه هغه د کابل وزارت خارجه ته را نغلے شو ، ځکه چه
لږے ورځے پس داؤد خان او وژلے شو او په افغانستان کښے
حزب یان حکمران شو . د حسن خان په شان د داؤد خان دوستان
د ملک نه باهر پاتے شول .

تیر کال زه د افغانستان نه راغلے په خپله حجره کښے ناست
وم چه یو ښائسته موټر راغلو - زه ور پاڅیدم ګورم چه

مشر خو دکشرانو نه زیات جوړ جوړولے سړے او یو ورسره لکه پیڅلس کلن ښکلے شهزاده زلمے چه دا فرق نه کیدو چه پښتون دے که یورپی دے، ترے را ښکته شول - خو چه دغه مشر سړے ماسره غاړه غړئ کیدو نه پس هغه ته اووئیل چه "څویه! دا دے کاکا خټک اجمل دے" او هغه زما غیږ ته راننز دے شو او ووے وئیل "کاکا جان! زما ډیر ارمان وو چه تا اوویښم" نو زه پوه شوم چه په یورپ کښے لویئے شوے پښتون زلمے دے. تندے مِ ور ته ښکل کړو او ځان ته مِ را جوخت کړو.

ولے سوچ کوم چه دا څوک دی - خو ښه ده چه د حسن (لالیشکو) پوهزے، سترګو او تندی زما کار اسان کړو او دوباره د دے وینا سره ورغاړه وتم چه "لا لیشکو - زما کور ته په خیر راغلے" او دغه شان زما د ځلو پښتو کالو زوړ یار، د پیښور جیل لیونے لالیشکو زما کلی، حجره او کټ کښے ماسره کښیناستو "چه خدائے یے کوی نو هغه کار نه هم او شی چه عقل ته ګران ښکاری."

حسن خان (لالیشکو) چه دمه شو نو ما ته یئے اووئیل چه زه د ډیر لږ ساعت د پاره راغلے یم - او ژر به درنه ځم. زه نن سبا د خپلے کورنئ سره په سویئزرلینډ کښے اوسیږم -

څه دګزارې کاروبار کوم ۰ دا م ځوئې دے۔ دده واده م تیار کړے۔خو دے زړه راته اووے چه لالیشکو! تاخو سوګند کړے وو چه نکاح به هله ترم چه دخوشحال بابا دقبر ښنا ختنه بښکل کړے ۔ ولے دخوشحال بابا د قبر په ځاے سئ د بندی خانو شکنجو او د پېښور جيل ته اورسیدے راشه داسوګند اوس داسے پوره کړه چه دا ځوے دے دسوئیز رلیند به پاسپورټ ختکو ته بوځه چه دبابا دقبر تیږ ے ښکل کړی بيا به ورته واده اوکړے۔"

که زه شوم که هغه ما نور ایسار نه کړے شو او ورسره دایسوړا و چشمئ منځ کښے زړه هدیره کښے پروت د خوشحال بابا قبر ته لاړم . هلته بلار اوځوئ به قبر لاس کیښوُ ل ، تیږے یۓ ښکل کړے ۔ دُعایۓ ورته اوکړه. د بابا دګنبت دخټک نه یۓ ښی لاس ته لیرے بهید ونکی اباسین مخامخ وریځو کښے پټ کړے مار غر اوکس لاس ته دخیبر غرونه او د تاترے سر اودهغه مقام نه چاپیره دختکو ښاره میره او شانته دبلوڅو ځنګل او د چشمئ غر اولیدو. هلته موعکسونه (فوټوګانی) هم او ایستل او بیا راروان شو ۰ زه کورته راغلم هغه سوئیز رلیند تللو دبیاره اسلام آباد ته لاړو ۰ ارمان چه حسن هغه عکسونه ماته رالیږلے وه چه نن ما دے لیک سره د لته

شامل کړے وے چه تاسو هم د پلو مستر حسن خان به یو ربی دریشئ (سوټ) کښې د پېښور جیل لیونے لالیشکو لیدلے وے او د پېښور د جیل د هغه وخت قید یانو هم نو هر یو ته به د لیونی دا خوږه سندره او به خیال خیال مسته ګډا یاده شوے وه چه :

په لوییو لاړو کښې غاټول شیندلی دینه

مورے ما ته ما ایلبند ته بوځه!
مورے ما ته ما ایلبند ته بوځه!

٦/١/٩٥

# لیونے آغه جان

# که

# رئیس امان الله خان؟

د ا د ۵۶ - ۱۹۵۵ء موده وه څکه چه زه دقیوم خان د بند
نه ایله (خلاص) شوے وم. په کلی کښے په خپله حجره کښې دکلیوالو
سره م نا سته پاسته کوله، د همزولو او زلمو سره مو د لوبو
او والیبال میدان گرم کړے و. شپه به مو په تنګ ټکورړونړوله
او ورځ به په ښکار ونو او زیارتونو کر ځید و. د جیل د شکنجو نه
پس د خپل کلي د خلکو سره د آزادکړ شپې وختونه وو.

دغه ورځو کښے زمونږ کلي ته د چرته نه یو لیونے راغلے و
خو ډیر خوندور لیونے و، په ټول کلي کښے په آغاجان کابلی
مشهور و. بیر سر، لویه ږیره، شلیدلے جامے، نیم بربنډ
وجود، خبرے یے نه کولے، خو کوټکے نه و، څکه چه د هر چا
هره خبره به یے اوریده او هغے به پورے اثر کولو. هر چرته

به چه جمع جوړ وه ، جرګه مرکه ، مجلس تماشا ، غم ښادي جنج ، جنازه او ګڼه ګوڼه به وه آغه جان به حاضر و او په وادہ ښادئ کښې خو به یې په ګډیدو ځان وژلو او داسے ګډا به یې کوله چه لویئ لویئ فنکاران ترے لوټکے شه .

د ورځې به یو مخ په ټول کلی کښې ګرځېدو او د شپے د اوده کیدو ځائے یې چا ته نه و معلوم . چا وئیل اخون دین بابا زیارت کښے شپه تیروی ، چا به وے د دربار جماعت سره "ناځایی" (دپرسیانو اډه) کښې د چرسیانو ملنګانو سره پروت وي ، چا به وئیل چه د سورپل لاندے وي ، چا به وئیل چه مونږ ماسخوتن د خوشحال بابا قبر ته په تلو لید لے دے او چا به وئیل مونږ سحر بانګونو مال د چشمئ په لاره اکوړي ته روان لیدلے دے وغیره ، وغیره .

په دے ټولو خبرو کښې د هغه یو عادت پیر پوخ او باقاعده وه هر ماښام به زمونږ د حجرے لاندے چوک بازار کښې د فقیر لالا په دکان کښې د کابل ریډیو عربیدو ، نو دے به ورته ولاړو او ټول پروګرام به یې اوریدو ، خصوصًا د پښتو ښستان پروګرام .

ما ته یا د شي چه د جیل نه راغلم نو حجرے ته نور هم ډیر خلکو کښې زما لیدو ته آغه جان هم راغلے و . او ښه رم یاد شي چه سلطانی ډم زما د راتلو په خوشحالئ کښې "ساختی" (د خوشحاله مخصوص طرز او وزن باندے ډول یا نغاره وهله ، نو آغه جان

ورنه په ګډا شو او دومره زیات ګډ شو چه تماشګیرو په زور کښېښولو، ګنی دستړیا نه راغورځیدو .

ما چه کلی کښې څو ورځې تېرې کړې، د آغه جان د حرکاتو، خویئے خصلت، ګرځیدو، عادتونو او شغلونو نه خبر شوم . د خلکو نه مې دده خبرې واوریدې او اکثر به دچشمی لیونی میاں سره د سیرؤډک کند کښې زموږ دبرانډې ګوټ کښې په مزکه ناست وو، ز موږ مجلس به یئے آو ریدو . یا به د کُتی ملنګ سره ناست وو، هغه به چه خپلو سپو کوترو باندې دخیر ګډا ډوډئ اوخوړله او پاتې به یئے آغه جان ته او غورځوله چه واخله آغه جان ته هم وخوره، نو دا هرڅه مالیدل . او دے خبرو زه دته ځیر کړم، خصوصاً د فقیر لالا د دُکان ریډیو پروګرام ډیر باقاعده اوریدو، دۀ ته ډیر متوجه کړم . خو د ډیر زیات احتیاط سره !

زموږ د حجرے میدان د والی بال ګراونډ (لوبغالی) دے او د دے سره دوه قدمه کښې د فقیر لالا دُکان دے . ددے دُکان کومه چنه ( دیوال ) چه زموږ میدان ته مخامخ ده هغې کښې دغتو ډمبرو سَوره ده، چه ډېرے زیاتے ډمبرے پکښې وې یوه وریځ ماښام موږ د لوبے نه پس ګراونډ کښے ناست یو چه دے کښې مخامخ د ډمبرو د خاڼے سره شور شو چه موږ وروړسیدو

نو آغه جان د ډمبرو په سوره لاس ننوتے دے ، د ډمبرے پر سے رایاریدلے دی او خلک ورته چغې وهی چه " آغه جان! راتښته، ډمبرے به دے اوخوری ، مړ به دِ کړی " ولے آغه جان د هیچا نه اوری ، هغه شان ولاړ دے ، آخر چا په څه چل د هغه ځایه لرے کړو ، ولے آغه جان څو ورځے مرګی حال ناروغه پروت و ، خو کلی کښے مشهوره شوه چه آغه جان رښتیا لیونے دے. ما چه د دے واقعے نه پس معلومات وکړل ، نو د دے نه دوه ورځے وړاندے د کلی تهانیدار (پولیس) چه دلته هره ورځ باقاعده د آغه جان د ریډیو اوریدو نه خبر شوے و ، نو آغه جان یے یوه ډنډه وهلے و او ورته یے ویلی وو چه " دا ته څنګه لیونے یے چه هر ماښام دلته د پښتو ستان پروګرام اوریدل نه قضا کوے - دا لیونے دا سے وی ، ته ما ته څوک جاسوس ښکارے"

بله ورځ خبر شوم چه د فلانکی خان ( نوم یے نه لیکم خفه به شی ) په کور ورننوتے دے او هغوئ ښه وهلے دے ، چه د هغے تحقیق م اوکړو ، نو هلته هم چه آغه جان د هغوئ حجره کښے ناست و او په غوږ یے د هغوئ مجلس آوریده نو د خان یو مصاحب ورته اوکتل او وے وئیل " خان! دا آغه جان ما ته لیونے نه ښکاری " د هغے نه څو ورځے پس یے لکه د لیونو حرکت اوکړو او وهل یے اوخوړل .

د دے او داسے نورو یو څو واقعاتو نه پس زه په دے نتیجه اورسیدم چه دا حرکات آغه جان د دے دپاره کوي چه ددے شک منو خلکو شک لرے کړي او ځان رښتیا لیونے ثابت کړي ، ګنی لیونے نه دے .

آغه جان ناڅاپه ورک شو ، چا وئیل یو لیس بوتلے دے ، چا وئیل هره ورځ به یئ په سین کښے لامبل نوسین وړے دے ، چا به وئیل چه د لیونو به څه وایئ چه څنګه راځی ، داسے ځی .

په دے واقعه څلور پنځه کاله تیر شول ، زه او سید میر مهدی شاه باچا کابل ته لاړو . هلته سحر زه خپله کوټه کښے ناست یم چه زما میلمه پال (مهماندار) تاج محمدخان ورډک راغے او ورسره یو ښکلے ځوان دے . ډیره مزیداره دریشی (وردی) یئ اچولے ده . یقین اوکړئ په کابل کښے دومره چست ، ښکلے او سپیڅلے ځوان ما تر دے وخته بل نه وو لیدلے . چه دوئ رانوتل نو تاج محمدخان ماته اوخندل وے وئیل « خټک صیب دا ځوان پیژنے ؟ » ما ځوان ته اوکتل او په څیر ښوم ورته . تاج محمدخان ووئیل سنه ورته اوګوره ، دے په تا ډیر مئین دے او خاص ستا لیدو ته راغلے دے « ما بیا هغه ځوان ته اوکتل ، دځوان رنګ درنګ په درنګ سورکیږي او جذباتي کیږی ، خو خاموش ولاړ دے ، کله ماته ګوری او کله کوز ګوری ، لکه چه څه ورته یاد یاد

کیږي. جذ بات يې بدلېږي را بدلیږي ، زړ خوله پرانستل او
خځ وښُیل غواړی ، خوتاج محمدته گوری. لږ ه لحظه پس چه مایځ
سترګوته، د سترګو او تندی محراب ته ، پوزے ته او د پوزے تیرته
سنه غور اوکړو ، نو دخپل کلی لیونے آغه جان رایاد شو. د ے
زړه راته اوونیل چه وریاځه او ورغاړه وځه اوورته او وایه
" ته آغه جان خونه یځ؟" ولے چرته ببر سرے ،ترنامه ږیره ،
زیږ ژ بنیلے ، وران و یجاړ آغه جان اوچرته دا بنکلے سورسپین،
سنه مزے ( صحت مند) چست ، مهذب او منظم لوئ فوجی افسر !
زه په دے سوچ یم چه فوجی افسر نور صبر اونکړو او زما په کته
په ما را بیربوتو او په خندا او ژړا کړوړ حالت کښے یځ اووئیل چه
ختک صیب زه ستاسو د کلی لیونے آغه جان یم " بس نو د دے
سره دواړو ته ډیرڅه رایاد شول ، ډیر جذبات راولړ زیدل،
ډیر وخت مو یو بل ته څه ونه وئیلے شول. آخر تاج محمد خان ووئیل
ختک صاحب دا امان الله خان وردګ رئیس ترافیک د ے ، د جرنیل
چوکئ ریځ ده او د صدر اعظم ( داؤد خان) صاحب خاص ملګرے
دے. ده چه ستاسو د کلی ، ستا د کور ، ستا د ټوند او ستاسو د
کلیوالو کومے قیصے مونږ ته او سردار صاحب ته کړی دی اوستاسو
د پارټئ کوم احوال یځ بیان کړے دے ، نو مونږ یځ په تاسو مئین کړی
یو ، او دے خوځان ستا مرید بلکے نوکر ګنړی ، اوس ته پوه

شه او دے پوه شه .

امان الله خان (آغه جان) زمانه وړومبے تپوس د کُتی ملنګ اوکړو ، بیا یے دچشمی دلیونی میاں صاحب اوکړو او بیا یے د فقیرلالا وکړو او بیا یے د کلی دیوے یوے حجرے، یو یو دکاندار یو یو مهلت بلکے یو یو سړی پوښتنے اوکړے او ډیره لحظه لګیا و زما دکلی دخلکو دهغه سره د مینے محبت خبرے کولے او ده بیا بیا دیو یو صفتونه کول. آخر کښے یے اووئیل چه ، ما دڅوند سبه وخت اکوړی کښے تیر کړے دے چه هیر به م نشی. اومایه خپل ژوندکښے د اکوړی د خلقو مینه لیدلے ده، نوبل ځائے د اسے نشسته ..

عجیبه داوه چه دټول کلی دهر څه او هر چا نه سبه خبر و ، تردے چه دکورونو دننه حالاتو نه یے هم ځان خبر ساتلے وو . دمثال په طور دنورو قیصه به څه کوم دخپل کور به درته اووایم . ما ته یے اووئیل چه تا سو یو ورځ د والی بال دمیچ دیاره چارسدے ته تللئ . د خرڅ دپاره دسړی سر سپځه روپۍ چنده ورکول وو ، ولے تاسره پینځه روپۍ نه وے، نو ته کورته لاړے ، کورهم پینځه روپۍ نه وے، نوستا فلا نکۍ خور لاړه دامین الدین دخور نه یے قرض اوغوښتے، هغے سره نه وے نو بیا دے خور په دیوال سر پورته کړو د بسم الله شاه

باچا د تمبر نه یې پنځه روپۍ قرض کړے او تا نه یې درکړے.

۱ وو زمونږ د کلی لیونے آغه جان او دا یې لیونتوب !

خو قیصه دلته نه ختمیږی. بله ورځ آغه جان مونږ دځان سره خپل کلی چغتو (وردګو) ته روان کړو. چغتو د وردګو مرکز دے، د. کابل نه لرے دے او غزنی ته نږدے دے. هلته یې زمونږ د عزت دپاره د علاقے مشران راجمع کړي وو. ښه ښکلے بنګله او ښا یسته باغ یې وو. ډیره درنه او بې مثاله میلمستیا یې راکړه. ورځ مو تیره کړه چې را روانیدو د خپلے بنګلے او باغچې منځ کښے یو اوچت ځاے اودریدو وئیل یې :

د ختک صیب ! دلته به تا ته بنګله جوړوم ، چه ته هیواد ته راځے نو دلته به پاتے کیږے.

د خدا ئیے کارونو ته ګورئ څو کاله پس زه بیا افغانستان ته لاړم ، کابل هوټل کښے دیره شوم ، هغه تیر شوه او امان الله خان ما او نه لیدو، ماته را نغے ، نو ما د تاج محمد خان نه تپوس اوکړو چه امان الله خان داخل ولے ما او نه لیدو. هغه زما په وینا حیران شو او بیا یې اسویلے اوکړو او وے وئیل : « ته خبر نه یې، هغه خو دیو زوے سره د موټر جنګیدو په حادثه کښے وفات شو دے » ما چه دا خبر واوریدو نو سر را باندے اوګرځیدو او هغه وخت م تاج محمد خان ته اووئیل چه ما کابل کښے د هغه کور ته بوځه،

ولے تاج محمد خان څه بهانه اوکړه ، موږ د تلو نه پاتے شو. خو ماضد اوکړو ، نو بله ورځ یې د هغه کور ته بوتلم . د هغه ټبر او بال بچ ته ورغلم . په هغه کوټه کښې کښیناستم چه مخامخ پکښې اوس هم د داؤد خان او باچا خان فوټوګان لګیدلی وو. حالانکه داؤد خان د وزارت عظمیٰ نه غورځولے شوے و . امان الله خان د بال بچ سره م د هغه یاد ، ارمان او غم کښې سبه وخت تیر کړو، بیا فیصله وشوه چه سبا به که خیروی جختوته د هغه قبر ته ځو.

سبا له زه او غازی خان د ببو او نور د حکومت سړی او ارسلان خان سلیمی ورذګ روان شو. زه سبه پوهه شوم چه حکومت زموږ په تګ خوشحال نه دے ، خو زموږ نه مجبور و ، موږ ته یے د تللو اجازت راکړو . د دے دوران کښې ماته معلومه شوی وه چه امان الله خان او د هغه زوئے د یو منصوبے لاندے د سیاسی رقابت په وجه د موږ جنګولو په دسیسه قتل شوی دی.

چه موږ جختوته اورسیدو نو هلته غم او درد دومره زیات او جذبات دومره مجروح شو چه په هیڅ پوهه نه شو چه هلته مونږه اوکړل او څه اونکړل ، ځکه چه زه د امان الله خان (آغه جا) قبرته لاړم نو هغه ځاے چه هغه ماته زما د پاره د بنګلے جوړولو د پاره منلے وو ، هلته د هغه او د هغه د زوئے قبرونه جوړ شوی وو . کوم ځاے چه په امان الله خان ورذګ ماته بنګله جوړوله ، هلته د آغه جان د خاورو ځلے جوړ شو .

۶/۲/۹۵

# عقل ته کرانه خدائے ته اسانه

نن زموږ ځائے ته یو لیسنه کروزر (موټر کادے) راغلو. دا څه دومره ښکلے او شانداره وو چه زما نښی یاد چه دا سے کار دے ما ددے نه مخکښې لیدلے وی ـ اوکه لیدلے مِ وی نو دا راته نه یادیږی چه دچاو؟ او کوم ځائے و؟

دموټر نه یو ډیر خوږ او مضبوط، سور سپین، غوړ او خوشحال غونډے سړے راکوز شو. دږ نه قواره، توره ږیره، سپین لباس، سوربخن قره قل، امریکایئ بوټان او ډول چال یئ داسے وو، لکه یا دچترال مهتر شهزاده وی یا دښوارو پخوانے ملک. ور سره درے څلور همدغه شان ملګری وو، خو هغوئ دده شانته دلسے راروان وو، لکه دده نوکران یا مریدان وی.

زموږ حجرے کښې ناست ټول کسان ورته پاڅیدل، هرکلے او ښه-ګړه مو ورسره اوکړل او په کټونو کښېنا ستو. زه په ژوند کښې په وړومبی ځل خفه شوم چه زموږ شایدلی کټونه او خیرن څڅـن بالښتونه دهغوی د ناستے جوګه نه وو. زما ډیر میلمانه راځي

خو هغوی یا خو زما ملګری دی ما پېژني، یا که ډیر معتبر دی خو
زما د ژوند ژواک نه اشنا وي. بله خبره دا ده چه دا رانه څوک
داسې میلمه ښکاریدو چه د هغه د هستوګنې او د ژوند معیار او
د عزت او میلمستیا قدر به د هغه په خیال ما سره نه وی، نو خدائے
خبر چه څه به وائي.

ما دا میلمه او نه پیژندو، خو دے داسې را غاړه وتو لکه
چه یا خو ما ښه پیژني، یا د پیژندګلوۍ او تعلق تأثر را کوی. البته
چه علیک سلیک کښې یې خوله پرانیسته، نو پوهه شوم چه دا افغانستان
څوک دے. هغه چه خپل تعارف اوکړو نو رښتیا «افغان
مهاجر» وو. ولې چه ما د هغه او د هغه د ملګرو کړه وړه ته کتل
نو ځان سره مې وئیل چه دا څنګه «افغان مهاجر» دے. او حجره
کښې موږ و ناستو کسانو هم یو بل ته اوکتل چه «افغان مهاجر»
داسې وی؟ موږ سره زموږ په چم کښې اوسیدونکے احمدزے ماما
(افغان مهاجر) هم ناست و، چه دا احمدزو مشر دے او هلته لوئے
خان و، ولې دلته لکه فقیر دے. دلته یو مدیر صاحب هم د هغه
خلکو سره اوسیدو، چه د محمد داؤد خان او حکومتونو کښې رئیس
و، ولې هغه لکه د پښتنو کوچیانو د خوارۍ ژوند تیرولو.
بیګاه ماښام یو داسې زلمے هم راغلے و چه د درے ولایتونو کښې
یې ګورنری کړې وه. هغه هم خوارېږي او ورځ کټک و. مخامخ دروازه

کښې یو جګړن ( میجر ) هم د خپلې ډیرۍ (کادې ) سره ولاړ دے
بار ځنجان خرخوی او غم کوی چه د شپې دپاره به د خوراک دپاره څه
او ګټی که نه . د حجرې سره د « کابلیانو » بازار کښې شلګونه بوډاګان
او ماشومان او ځوانان د سحر نه تر ماسخوتن په مزکه ناست په چغو
چغو یو شے بل شے خرخ کړی او د شپې د غه شان سترې ستوماان
او نیمګړے نیمه خوا کیمپ ته روان شی . په کیمپ کښې ژمی کښې ماشومان
د یخنۍ نه ناجوړه شی او اوړی کښې د ګرمۍ نه مړه شی . ځوانانو
مهاجرینو ته نه کار شته او نه روزګار ، نه نوکری ، نه خوارښې او نه
درمے وا په وخته خوراک . چه بیمار شی نو بیماری یې یو نول او مرګ
یې بل . وجودونه وچ ، سوی او تور شوی . ماشومان چینجی ښکاری ،
ځوانان د قبر نه راپاڅیدلی مړی او مشران د هډوکو پنجرے .
پرون حجرے ته زمونږ د ګرک ( میرے ، د کیمپ نه یو ، جرګه راغلے
وه ئیل یې « درے میاشتې شوی دی د ے کیمپ ته یې راوړی یو ، په
ډاګ میدان کښې یې غورزولی یو ، نه د سر سیورے شته ، نه د کیډو ے
ویس . بوډاګان راته مړی ، ماشومان راته ژاړی ، مونږ څه اوکړو
او چاته لاړ شو . » دلته ماته هره ورځ مهاجر وزیران ، لیډران ،
قامی مشران او پروفیسران راځی . هر یو ته چه اوګورے اول خو
دومره ځوریدلے وی او دومره تکلیف کښې وی چه پیژندے نشی
او چه وې پیژنے هغوئ به اوچو شوندو ، زیړ وسترګو او

ببره بزیره تا ته د خندا کوشش کوی او تا ته ژړا درځي . د
" افغان مهاجرو " خو دا حال او بد ، ورځ ده او د " افغان مهاجر
شناخت خو هغه دے . زما د حجرے خلک حیران شو چه دا څنګه او
کوم مهاجر دے . او زه هم فکروا خستم ، ځکه چه د لته ، هلته
حیات آباد او کیمپونو کښے چه ما کوم " افغان مهاجر" لیدلی دی هغه کوم
مهاجر دی او دا کوم ؟
دا فغانستان د لوے پښتون ، لوئے د یپلومیټ او لوئے حکومتي شخصیت
پژواک صاحب چه بین الملل کښے دا فغانستان مستقل نمایینده و او
ویرو ملکو کښے دافغانستان سفیرو ، د هغه ملاقات ته لاړم او د هغه
حالت مې اولیدو ، نو ژړا راغله . د هغه وراره چه دا فغانستان
وزیر داخله و ، هغه مې هم هلته اولیدو او هغه ته یے یو دسترخوان
کښے نغښتي بازاري نانبائي د وډۍ غوټه کړے راوړي وه ،
هغے ته مې اوکتل او د هغه دکور میلمستیا را یاده شوه چه پنځلس کزه
لوے دسترخوان باندے شلګونه تو که خوراکونه ، پلاوونه ، غوښے
میوے او نوی نوی شربتونه پراته وو ، هغه را یاد شول او بیا چه د
معین صاحب کور ته لاړم او د هغه د ماند ینے دکابل د وخت او ننی
حالت مقایسه را مخکښے شوه نو دے هر څه او د لسے نور و
واقعاتو باندے که هغوی بیا هم خپل هوچ ، پت او خودداری او عزت نفس لوړ
ساتلے وو ، خو ما محسوس کړه چه " مهاجر " څه ته وائي .

ما دے زړه کښې اووئیل څوک د"تنظیم"مشر به وی، خو بیارانه
زړه او وئیل چه د تنظیمونو مشرانو سره خو وسله وال کار وی او
دېر په احتیاط کرځی. بله دا چه که په ډول ډال تازه او سمبال وی،
ولے به ستړکو او تندوکښې یې فکرونه، غمونه او اندیښنې ښکاری، ولے
دا خو څوک د دے هرچانه جدا "مهاجر" دے.

آخر م د خان سره اووئیل چه ته یې څه کوے هرڅوک چه دے
چه د ے وائی نو مهاجر به وی. خدائے لوئے دے، د لوی قدرتونو
خاوند دے، هرڅه کوی او هرڅنګه کولے شی. دا ډول مهاجر به
مانه وی لیدلی خو وی به. او دوه ډول مهاجر پیدا کیدے شی دا
ډول یه هم وی یا به دلته پیدا شوی وی.

خیر د یو شیبه (لږ وخت) ناستی نه پس "مهاجر" صیب
ماته اووئیل: "تاسره خانله (یواځے پیواځے) یوه خبره کوم" به دے
ویناز ه ددہ سره پاځیدم او د جدا ناستی کوټے ته ورغلو. هلته
چه د ناستی دوړن ځلے ته یې او کتل نو په ناستی یې لکه چه سمے
نه راتلو، خو مجبوراً نیمه حوا کښیناستو او ماته یې ویناشروع
کړه "زه ولی خان ته تللے وم، خو هغه راته او وئیل دا خبرے د
خټک سره اوکړه، نو تاته راغلے یم، که خفه کیږے نه نو یو تپوس
کوم" ما جواب ورکړو "ولے به خفه کیږم. یو تپوس نه شل
خو اوکړه. خو اول که ستاسو څه مصلحت (احتیاط) نه وی

نوماسره به خپل پوره پېژندګلوي اوکړئ ، هغه په دې خبره لږ سوچ واخستو چه ولې م سم اونه پېژندو . او لږ زهير غوندې هم شو . زه چه دده په دې ذهن پوه شوم نو ماورته معذرت اوکړو او د هغه تسلي م اوکړه چه ما د تعارف تپوس اوکړو نو دا د هغه د شخصيت وجه نه ده د هغه سره د خبرو د پاره د پوره شخصي پس منظر ضرورت دې ، چه خبرې بنيادي سوچه اوقطعي اوکړو . زما په دې توضيح هغه مطمئن شو او بيا يې خپل تعارف اوکړو . خو په تعارف کښې يې غټه خبره دا کوله چه هغه دچا نماينده دې او دده سره د افغانستان هغه اکثر دانشوران ، د تير دور حکمرانۍ سره تعلق لرونکي ، سياستمداران او د قبيلو مشران او د تنظيمونو صادق مجاهدين او افغان اولس ملګرې دې او دې يې مشر دې - چه کوم د افغانستان د نننۍ وضع نه تنګ او بيزار دي . امن ، ملي اداره او آبادي غواړي . د دې پېژندګلوۍ نه پس هغه بيا شروع شو : « تاسو د افغانستان د تاريخ ، نننۍ واقعاتو او نننۍ بدې ورځې نه د هرچا نه زيات خبر يئ او ټول خلک پېژنئ ، د افغانستان ټول خلک هم تاسو پېژني او نن ټول تاسو ته ګوري . تاسو د دې نه هم ښه واقف يئ چه افغانستان تباه شو او نور هم تباه کيږي . د افغانستان اولسونه لوږه واړه ، لږه نږ دې ، باهر د ننه ، تنظيمونو کښې او د تنظيمونو نه باهر

نورے اونورے سیاسی ډلے، په جنګ بوخت فریقونه ټول نور بس تنګ شول اوس سوله او امن غواړی. بیرونی ملکونو او طاقتونو هم هر څه او ازمایل اوس نور که افغانستان د غه شان پرینږدی نو ملک خرابیږی او د دغه طاقتونو منافعو ته هم تاوان د ے، اوس نوره دا وضع هیڅوک نه خوښوی. ما په دے لړکښے ډیر کوشش کړیدے او مجلسونه او جرګے م کړیدی. افغانان او دافغانستان مشران تیار دی، خو باید څوک د دے ملی اسلامی تاریخی او انسانی کار د پاره را وړاندے شی او تاسو دا کار ترهر چا ښه کولے شئ. زموږ او دافغانانو فیصله د ه چه بس تاسو را پاڅئ.»

ماچه دا او ریدل، نو دځان سره مو سکے غوندے شوم چه دا سے خبرے او دعوت ما څو څو ځله د هر چا نه اوریدلے دے او تقریبًا هره ورځ یے اورم. خو هر چا چه دا سے خبرے کړے دی، دهغے شا ته د هر چا خپل خپل شخصی یا د له ئیز پلان و ما سره یے خبرے او وعدے اوکړے او چه زما نه لاړو نو د خپل پلان د پاره یے بله لاره پیدا کړه، په هغے روان شو او په هغے کښے ورک شو، چه څه موده پس ما بیا اولیدو، نو بیا یے هم دغه شان خبرے اوکړے. دے صاحب چه زما فکر ژر نه خاموشه مو سکا اولیده، نو بیا ګویا شو: «زه دا خبره دیو فرد په حیث نه کوم

دا فغانانو دملت، تاریخ او فیصلې په نمائنده ګئ یې کوم، او بل چا ته یې نه کوم تاسو ته یې کوم. ما د فقیر کچکول نه دے راوړے ملی مسئولیت راو سپے یم او تاسو ته ځکه راغلے یم چه تاسو هم د مسئولیت او نمائنده ګئ دعوے کوئ او ټول افغانستان تاسو ته د روړ او مشر په حیث ډیر احترام کړیدے، هرچا در ته د زړه په سر مقام درکړے دے او تاسو د هر چا سره د ورور ولئ وعدے کړیدی. په تقریرونو او جرګو کښے مو د هیواد او هیوادوالو د مستقبل دپاره لوئے لوئے خبرے کړیدی. ملت هم تاسو ته د یر ځله دُعا دخیر کړے. د ه که ستا سو هیر نه وی نو تاسو هیواد او هیواد والو ته ځان تړلے دے. پرون تاسو افغانستان کښے ګرځیدئ او س زمانے پیر خوړلے دے افغانستان تاسو ته راغلے دے او نن خو افغانستان تاسو ته ګوری، ولے تاسو څه کوئ؟ تاسو دا هر څه هیر وئ؟ هغه تاسو به چه مونږ ته عنعنه، تاریخ او ننګ ښائلو هغه اوس تاسو پریږدئ؟ د ننئ مسئولیت نه سترګے پټوئ که رایاځئ؟ زه چه تاسو ته ګورم نو دا زړه را ته وائی چه دا افغانستان خلکو ته او وایم چه جلال آباد کښے شیشم باغ کښے د باچا خان کور ته لاړشئ، د هغه قبر ته او دریږئ او ورته او ووائی چه بابا تاسو به چه پرون د کوز هیواد د درد درد و نه او غمونه مونږ ته راوړل، نو نن په مونږ تباهی راغلے ده

موږ چا ته لاړ شو او هغو مور خوږه زما په خپلو کورونو، سیاستونو او ژوند
کښې مصروف دي، موږ ته نه ګوري، نو اوس به زموږ حالت
هغوئ ته څوک وړي، راپاڅه د هغوئ سترګې او غړوه. او که
ته نشی راپاڅېدې، نو را ته او ښایه چه هلته به څوک د امسؤولیت
ترسره کوي. چه څنګه ستا په موږ د ورورولئ دعوه وه، زموږ
په تا د ورورولئ دعوه ده "

مسي چه دا دومره څه په ډېر جوش او غُصه کښې ماته وا وروُل
نو زما په زخمونو یې ډېره مالګه او دوړوُله. ماته یې ډېر تکانونه
راکړل، زما په زړه یې زخمونه تازه کړل او د هر زخم خوله زما په
شونډو خپل عکس د ناتوانئ د موسکا په شکل ښکاره کړو. هغه ته
م او وئیل "بس که نور څه وئیل غواړې؟" هغه جواب راکړو
"دو ښا خو ډېر څه شته، خو ضرورت یې نشته. دا هر څه ما د
رورولئ په دعوه او زموږ او ستاسو د شریک ملي مسؤولیت په
اساس وئیلي دي. هیله م ده چه ته به خفه شوې نه یې. زه
دردمن یم، زه مجبور یم. دا فغانستان علاج که او نشی،
نو هڅې یې کیږي، ورکیږي او آینده نسلونو ته او تاریخ ته
لکه څنګه چه موږ مسؤول یو، تاسو هم یئ. موږ خو دا
وئیلي شو چه تباه شو، برباد شو، دربه در شو، خوځلې ځلې
کړو. په بې وسئ او بې وزلئ کښې په آرام نه یو ناست. څوک

بوځاے درپه در، ځوک بل ځاے مسافر، ولے تاسو به تاریخ ته ځه جواب ورکوئ. چه په کور کښے درته رور د لوږے مړکيد واو تاریخي کور مو په وینو لمبوٗلے کيدو او په هور کښے سوزولے شو تاسو ځه کړی او ځه کوٗل .»

ما چه دهغه دا تقریر واوریدو ، نو سوال مِ پرے اوکړو :

« تاسو ځه واي مونږ ځه ارکړو »

هغه جواب راکړو : « تاسو هر ځه کولے شئ ، ځوکه کوٗلے غواړئ »

ما ورته اووئیل . داخبره ډیر وخت غواړی چه زه تا پوهه کړم چه مونږ چه ځه کوٗلے شو ل هغه موکړی دی او ځه مونه دی کړی او راسره ډیر ښه سندونه موجود دی . هغه کسان چه مونږ ورسره خبرے اترے او جرگے کړے دی هغه لاژوندی دی او چا سره موچه رابطه ساتلے ده هغه هم لاځدائے ژوندی لری اومونږ چه په ملی تقاضا دعقل ، پوهی ، سیاسی تدبر او صلاح مشورے په بنیاد په ځه کښے خیر لیدلو ، ځه موغو ښتل یا موکړی دی ، دهغے ثبوت نن ورکوٗلے شی او د صبا دپاره راسره شکر دے جواب شته . نوونن خبره داده چه تر راغلے یئ ، ځه دپاره راغلے یئ ؟ مونږ ته ځه وائے ؟ هغه خبره به اوکړو . او یقین لرم چه مو لاره جوړه کړه نو په هغے به په شریکه روانیږو . که تاسو مخکښے

کیږئ تاسو پسې به یو اوکه مونږ مخکښې کوئ، مونږ به وړاندې تاسو راپسې. البته اول شرط به داوی چه جنګ علاج نه دے صلح او امن دے او د خپلو تاریخی، اسلامی، ملی او معنوی منلی شوی تقاضو مطابق په لویه جرګه کښې دے.

دویم لویے شرط د هر قسم بیرونی مداخلت ختمول دی. په دے معنے چه نه به څوک خپل قوت را داخلوی، نه به خپل پهتیان رایجنتان (بلادست نشانده) په افغانستان مسلط کوی، نه به څوک د افغانانو د ملی ارادے او روحیے خلاف د خپل بازو په زور تارو راکابزی او د خپل غرض ریشے خوروی او نه به باهرنی حکومتونه په څه ناڅه ډول د افغانانو په مشاورتی مصالحتی جرګه کښې د افغانستان د آزاد او متحد مستقبل په ضد خپل مخصوص منصوبے پلانونه راداخلوی.

دریم شرط داچه افغانستان په هر ډول وران شوے دے او س به په زړه ملی، اسلامی، تاریخی او معنوی روحیه نوے افغانستان د ټولو افغانانو په آزاده رائے جوړیږی. د هیڅ ډلے، جماعت، فریق، عقیدے، سمت یا شخص د غلبے او مرضی تابع هیڅ فیصله نشی کیدے او په شریکه او ملی رائے به هره فیصله کیدے شی.

څلورم شرط داچه د افغان ملت د تاریخ، عنعنے او ملی روحیے مطابق ملت کښې د هیڅ قسم تمیز فرق نشی منلے کیدے. نو یو د وه یا

یو څو ډلې یا فریقونه د افغانستان د معضلې د هوارولو نه حق لري، نه اختیار او نه وس (قدرت).

هغه چه دا واوریدل، نو رابېر غونډ ے شو او وې وئیل بس دغه زمونږ هم فیصله ده. را پا څئ چه په دې کار شروع اوکړو.

ماورته او وئیل: «صیب! دا یوائې ستا او زما کار نه دے افغانستان که حقیقت کښې یوافغان دے، خو قبیلې، خیلو نه، علاقې، ژبې، نسلونه، عقیدے، تاریخ او عنعنه لري. بیا د څو وخت نه پکښې سیاسي جماعتونه او ډلې پیدا شوے دي او افغانستان کښې دخیل نفوذ هغوي ريښې غزولې دي او اوس خو پکښې تنظیمونه کروپونه او فریقونه دي چه په بیلا بیلو علاقو غلبه لري، موږچه کښې ناست دي، جنګ کوي، حملې کوي. د دوی لوخپلې خپلې دعوے، ضرورتونه او مجبوریتونه دي. د هر چا خپل خپل ترون او روحیات دي. هغه زما خبره را لنډه کړه «هو درست وائې، خو د دوی اوس تجربه شوے ده، تنګ شوي دي، ټول صلح غواړي. مونږ خبرے کړیدي او کوو او ټول تیار دي، خو څوک دا سے پکار دي چه را وړاندے شي او د دوی ترمینځه شي. مونږ تر دیره حده دا کار کړیدے، خو که تاسو راسره راپا څئ، نو کار به زر او اسان شي.»

ماورته او وئیل چه زه ستا د خبرو نه انکار نه کوم. منم چه

ټول افغانستان هوار کښې ولاړ دے، هر څوک تنګ دے، څوک دحضر (داخل افغانستان) دسفر په هوار کښې ولاړ دی، څوک دَ سفر په بلو لمبو کښې سوځي او څوک دجنګ په دوزخ کښې بـــې عذاب دی، ټول یو حل غواړی. اوزه خو دا وایم چه دګ دومره تباهئ، رور وژنې او کور سوزونې نه هر افغان ښه سبق اخستے دے، سترګے یے غړیدلے دی او که څوک په خوله وایی که نه وایی هریو د خدائ فضل ته آسمان ته سترګے نیولے دی، چه کله به یې خدائ ددے الهی قهر او انسانی قیامت نه خلاص کړی. هـــر افغان سوله او امن غواړی او زه خو ورسره په دے هم پوخ یقین لرم چه بمونو، ګازونو (کیمونو) هوړونو او جنګونو افغان مات ګوډ او افغانستان کنډواله کړو، خو دا فغان ملی روحیه خرابه شوے نه ده، بلکه چه زخمی شوے ده، نو را بیدار شوے ده او احساس پکښې پیدا شوے دے، انشاءالله یو لاره به ځان ته پید اکوی. خو ددے هر څه سره نن هم مشکلات ډیر دی. خارجی هم شته داخلی هم. څوک وائی چه خارجی زیات دخل لری څوک وایي داخلی ډیر لوے خنډ دے. زمونږ په رائے اول او آخر یې خارجی مشکلات حلوی دی او منځ کښې داخلی مشکلات ډیر زیات پیدا اوزور شول. او س دواړه قسم مشکلات یو بل سره داسے تړلی شوی او پیچلی شوی دی او دومره لوئے مشکل یې پیدا کړے دے چه او س یې نه خارجی مشکل

پیدا کوونکو ته چیل ورځی، نه دهغوئ داخلی مشکل پیدا کوونکو سره علاج شته.". هغه په منځ کښې راودا ګل " په دے هر څه مونږ غور کړے دے، خبرے موکړی دی، وعدے شوی دی او کامیابی لرے نه ده، خومخکښې کیدل به غواړی "
ماورته اووئیل: " جانَ! ستا په خبره دے فرښتے آمین اووائی خودے واضح آثار نشته، تشے منډے ترونهے وهلے شی، خبرے کیږی اوځان اوجهان ته دوکه ورکوله کیږی، نور څه یقینی او اعتباری عمل نشته. په اسلام آباد کښې فیصلے اوشوے، جلال آباد کښې تړونونه وشول، مکه معظمه کښې سوګندونه وخوړلے شول، ایران کښې قسمونه وشول، حکومتونه جوړ شول، دکابل تر تخت پورے اورسولے شول، رئیسان اوصدراعظمان وټاکل شول، په هغوئ لوړے وشوے، جوړے وشوے، روغے وشوے ورانو څومره څومره ځله راضی نامے وشوے اوعمل پرے اونه شو. افغانستان کښې او افغانستان نه بهر څه اونه شول اوڅه نه کیږی، څو نتیجه یے څه شوه؟ یوه ورځ دیلے نه بدتره او یوه شپه دیلے نه خرابه نو اوس نه په چا ملا تړے او په کوم دلیل خبره کوے؟"
هغه جواب راکړو " زه دا هر څه منم، خومونږ دے هر څه نه سبق اخستے مونږ دا سے نه کوو. مونږ پوره صلاح کړے او ترتیب مونیولے دے. خدائے به خیر کړی، څو تاسو جواب راکړئ چه تاسو به څه کوی؟ مونږ سره

په دې کار کښې اتفاق کوئ که نه ؟ بس اوس وخت نور انتظار نه کوي . "

ماورته اووئيل " شکر دے چه تاسو کار کړے هم دے، ګول هم غواړئ او مونږ سره مو په هغه بنيا دی اصولو اتفاق هم دے چه د افغانستان د امن او د افغان اولس د مستقبل د آبادئ د پاره مونږ ټراول شرطونه ضروری ښکاری . که څوک په بنيا دونو نور تجويز ونه لری هغه به هم اومنو . خدا ے د ستاسو ارادو او کوششونو کښے برکت واچوی، خو دا وئيلے شئ چه تاسو سره دے نيک کار کښے څوک څوک ملګری دی . هغه مختصر جواب راکړو " ټول " . ما ورته اووئيل ټول څنګه ؟ " هغه اووئيل " انشاء الله تاسو را شئ ، نو ټول به او وينئ " . مابيا اووئيل " دا په جنګ کښے نښتی فريقين هم پکښے تاسو سره شامل دی " هغه د پېلو مېتيک جواب راکړو : " انشاء الله تقريبًا ټول صلح او امن غواړی " . ماورته اووئيل که داسے خبره ده نو بيا دا د صلح او امن کوششونه چه کيږی دا کاميابيږی ولے نه ؟ " هغه اووئيل " کامياب به وو او کامياب به شی خو که په اخلاص څوک کوشش اوکړی " . ماورته اوو ئيل " کوشش به ستاسو په خيال څوک کوی ؟ " هغه اووئيل " دا به انشاء الله مونږ او تاسو کوو . " زه پوهه شوم چه يا زما په خبره پوهيږی نه شی يا پوهيدل نه غواړی . نو ما د ا بنيادی بحث پريښود

البته دا م ورته اوو ئیل : « صیب ! مونږ افغانستان کښې صلح او
امن غواړو خو د تاریخي افغانستان د خاورې بشپړ تمامیت ، د ملت
وحدت ، د باهرنی مداخلت خاتمه او د ټول افغانستان د خلکو
په ملی جرګه فیصله غواړو . دا کار د هرچا په لاس چه کیږی
یا اوشی مونږ یې مبارک ګڼړو ، تائید یې کوو او تر خپله وسه
هرډول کومک ته تیار یو » هغه را و دا نګل « بس بس شکریه
دغه مونږ هم غواړو او دد ے دپاره تاسو ته راغلی یو » ما زر د هغه
دخولے نه خبره واخسته او ورته م اوو ئیل « فلانکے صاحب موبوښے
دے ؟ » هغه او وئیل « ولے به یې نه یو سیتو ، هغه د افغانستان
مشر دے ، بغیر د هغه نه دا کار که ناممکن نه دے ، نوکران خو ضرور
دے ، چه هغه وی کار ډیر اسانیږی . ښ هغه ته د خلکو سترګے
دی ، خو هغه اوس ډیر ضعیف دے او میدان ته را دانګی نه . خدائے خبر
ولے هغه ځان د افغانستان او ملت نه شلوی هم نه ، ولے څه کوی هم نه
او چه خبرے هم کوی نو مد ہی کیږی نه ، زمونږ یقین دے چه
میدان جوړ شی نو بیا به را میدان ته شی ، اوس انتظار کوی . خو
په نور انتظار یې افغانستان ته هم تاوان دے او هغه ته هم تاوان
دے . تاسو او مونږ که په شریکه هغه ته اووایو ، نو کیدے شی
چه کار اوشی . » ماورته اوو ئیل « زه ستا په خبرو دا پوهه شوم
چه د هغه ملګرتیا درسره نشته . » هغه اوو ئیل « شته هم او

نشته‌هم » بیا م ترې پوښتنه اوکړه چه فلانکی فریق سره مو خبره کړې ده؟ » هغه اوویل چه نه لا مو نه ده کړې ، ځکه چه هغوی نښتی دی ، چه مونږ او تاسو جرګه جوړه کړو نو بیا هغوی انکار نشی کولې .» مابل سوال دا اوکړو چه هغه بل فریق مو پوښتلې دې ؟ » هغه اوویل » نه هغه هم دغه شان معامله ده .» بیا م ورته اوویل دغه بل فریق سره موڅه رابطه کړې ده ؟ » هغه اوویل چه نه دا ټول کار به انشاء الله په جرګه اوشی . ولې یوه خبره ده چه دا فریقونه (جنګی ) لاخپله ګرم دی او نورې خبرې هم شته ، نو هغوی خبره نه آوری . .»

مابیا پوښتنه اوکړه » د تنظیمونو ( په اصطلاح جهادی ) څه رائې ده ؟ » هغه اوویل » ستاسو څه خیال دې ؟ » ما ورته جواب ورکړو » ماخو درته اوس و ویلی دی ، چه مونږ د افغانستان خیرغواړو هرڅوک چه دا خیر لټوی مونږ یې مبارک کهو او دا تنظیمونه هم د افغانستان اولاد دې ، په افغانستان کښې حق لری . په روغه جوړه ، صلاح مشوره ، صلح او امن کښې پوره حساب لری . د هغوی با هر سائل نه انصاف دې ، نه ملی تقاضې سره سم ده ، نه د هغوی حق څوک خوړلې شی نه باید چه اوخوری او نه د هغوی بغیر فیصله اسانه ده . نظر او موقف به جدا جدا وی ، خو د افغانستان ملی اسلامی روحیه یوه ده او په دغه یوه روحیه کښې د ټول افغانستان او ملت نن

هم خیر دے، سبا هم او انشاء الله د دے روحیے سره سمه جرګے
باندے به د مستقبل د پاره حل او د هیواد جوړښت کیږي.»
بیا هغه اوویل: «داخو ته درست وایے، خو د هغوی رقابتونه او
نورے نوی زړے لانجے دی، د هغے علاج ګران دے» بیا ما
پښتوس اوکړو «افغانستان کښے سیاسی، نظریاتی او ملی او اسلامی
حزبونه وو، د هغوی په هکله موخه پروګرام دے؟» هغه جواب
راکړو «هغه سیاسی حزبونه اوس څه وزن نه لری، ګډوډی
دی، خپلو کښے وران دی او په خپلو کړو ملامته دی، خولار،
تړے ورکه ده..» ما اوویل: «بنه نو د ملک هغه روشنفکرات چه
دافغانستان نه بهرون، ن او صبا یے نظر دے او د ملک په چارو
کښے تجربه هم لری او ن په ټوله دنیا کښے خصوصًا ګاونډی ملکونو
کښے ناست دی، ځان پوره خبره ساتی، د هغوی په هکله موخه
خیال دے؟» هغه اوویل «هغوئ سره مو رابطه شته، خو دا
کار د روشنفکرانو نه دے، هغوئ مطالعے او تحلیل خوښه کوی
ولےسر هر چا سره خوزوی، جدی قدم هیڅ یا سره نه پورته کوی
البته چه لاره پیدا شی، نو بیا به ګورو چه څوک څه دی او څه کوی»
ما ورته اوویل «په کیمپونو کښے پراته مهاجرین اولسونه او د
هغوئ مشرانو سره موصلاح شته؟» هغه اوویل: «هو، هر کیمپ
کښے موصلاح مشور شته، خو دا کیمپونه خلکو ګډوډ کړی دی.

دهرڅپا لاسونه پکښې کار کوي - پوهه خوله نه دي "

ما چې د اتلې خبرې واورېدې، نو ځان سره مې سوچ اوکړو چې د افغانستان ټولو پښتنو او وسنيو څوا کوونو، دلو او شخصيتونو په هکله خو دده صاحب فکر منتش دے او د هيڅ سره يې نه اعتماد شته او نه صلاح مشوره، نو "ټول" د ده ملګري څنګه دي؟ دکوم ټول افغان په نمايندګۍ دومره لوئې مشکل کار پسې يې ملا تړلې ده - او ماته راغلے دے، ماته وائي چې ټول آماده دي، خو تاسو راپاڅئ. خيرهرڅه چې وو، ما د هغه خبرې واورېدې او پوهه شوم پرے چې دے څه وائي او څه غواړي او هغه به هم پوهه شوے وي چې زمونږ موقف څه دے. او دده نه پس هغه د ټللو اجازت اوغوښتو او ورته يې وئيل، مونږ خپله وظيفه سرته اورسوله، او س ستاسو کار دے چې څه کوئ که نه؟ زه ورسره پاڅيدم، ترکاډي ورسره لاړم. او چې رخصتيدو، نو ما ورته اووئيل "په مخه دې ښه، خدائے دې پخپل فضل په دغه نيک کار کښې کاميابه کړو. ياد لره چې که مونږ ته د خپلو هيواد والو دلاسه لارے بندے نه وي، نو دغيرو د هيڅ څه نه ويريږو. د رور اوکورجوړولو د ياره چې را باندے آواز اوشي نو هر وخت تيار يو "

هغه چې موږ ته ختلو، نو ماته يې په خندا دده خبرے جواب

داسې را کړو چه « نه به بیا اووایم چه تاسو را یاځئ » ماهم ورته
خندا کښې اووئیل چه « چاسره را یاځو ، ډیر لاسونه ، ډیرې خولې
ډیر مشران او ډیرې لارې دی ، چه ورته وایو صلاح شئ نه
صلاح کیږی . موږ ته هرڅو وائي چه را یاځئ ، خو دخیر خبره
مو هیڅوک نه منی . په دې تیارو کښې څنګه را یاځو ، اوچه دَ ګټې
په ځایې تاوان کوی او دهغوئي دروغې جوړې په ځای موږ هم
فریق کیږو ، اوس نو څنګه را یاځو ؟ که یو سره یاځو شل خفه
کیږي . اوچه موږ مشربابا ته تردې وخته کوم کوششونه اوکړل
هغه مشران کشران لاړوندی دی چه دهغوئي په وینا او صلاح
مو دکیمپو سره دتعلق پیدا کولو لاره روانه کړه د هغې ـــــ
حکومت دکمشنر صاحب په لاس مخالفت اوکړو او زموږ مخه
یې اونیوله . د تنظیمونو مشرانو او موږ خبرې اترې اوکړې اویوې
لارې جوړولو خبره اوشوه ، دهغې نتیجه څه شوه ، هغه د تنظیم
مشرانو نه تپوس اوکړه . دکندهار سرکرده مشران په ډیرو
دعوو او ارادو زموږ مشرانو سره کښیناستل ، چه موږ نه لاړل
بیایې په شا او نه کتل . د سیاسی حزبونو نمایندګان موږ ته په ډیر
ډاډ راشي ، خو هر یو خپلې خبرې کوي ، نه زموږ آوری نه دنورو
سیاسیانو آوری . د بر هیواد د قبیلو مشران راغلی دی ، ډیرې
خوږې او دروغې جوړې بنیادی خبرې یې کړی دی ، خو

په هغې مخکښې تګ ته چا پر یښې نه دی . په باهر دنیا کښې پخوانی افغان دولتی او اولسی سیاستدارانو راسره روابط جوړ کړی دی خو هیچا د هغې نه عملی فائده نه ده آخیستی . د غه شان مونږ سره یو مفصل ریکارډ د اسنادو موجود دے ، خو افسوس چه نتیجه یې نه ده ورکړے ، ځکه چه خارجی لاس زمونږ د خپلې ملی ارادے ، تجربے او ضرورت نه زیات قوی او مؤثر دے او ددے خارجی لاس په "برکت" افغانی ځواکونه او مشران هر یو خپل ځان اصلی نمایندہ او مضبوط قوت ګنړی ، نو مونږ سره چه خبره اوکړی ، جوړیدو ته تیار شي ، خو چه بیا زمونږ نه لاړ شی ، نو په بیلو بیلو لارو دروانیدو په لوره وان شي .
زمونږ د پرونی تاریخ او ننۍ تجربو نه دا حاصل دے چه وینه کښې ملی ، دینی ، تاریخی او افغانی استقلال شته او دهر افغان نوی پیښو او تجربو ددوی روحیه نوره هم تازه کړه ، خو دکورنۍ بدبختۍ او نفاق دلاسه دغیرو په جالکښې دلسے ګیر شوی دی چه که اوس په هرڅه پوهیږی ، خو د دے حال نه دوتلو چل نه ورځي او لاره نه مومي ."

هغه چه دا واوریدل ، نو بیا د موټر ندرا کوز شو او ما ته یې خبره شروع کړه " داهرڅه درست دی" او هر افغان تنګ د ے خو ددے تنګسیا او تباهۍ نه دخلاصون لاره نه مومی او مونږ وایو

چه راځئ چه دغه لاره پیدا کړو، نو بیا ؟ "

ماورته او ویل " مونږ پوّل هیوادوال داسې راګیر یو، چې
څوک مونږ د خپل سمون لاره ته نه پرېږدي، ځکه چې ویرېږي
چه که افغانانو کښې خپل سمون راشي، نو داسې به د افغانستان د ملي
جرګے د ارادے او ملي استقلال سمون وشي او غیر ملکونه داسې جوړ
غواړي چه په ظاهره افغاني وي، خو شاته اراده او فیصله د هغوئ
(خارجي ملکونو) وي . زمونږ یقین دے چه سره د بے اتفاقۍ او
ړله بازئ هیڅ افغانے داسې کور نه غواړي چه واک ئې د بل وي.
هر افغان پښتون شو چه خارجي ملکونه او طاقتونه خپل غرض ړانده
کړي دي او په دے تاریخي، روحي او اجتماعي حقیقت نه پوهیږي
چه افغانان او افغان ړلے (اوفریقونه) د هر نژاد، هرے ژبے
هرے علاقے او هرے عقیدے چه دي او نن چه هره مورچه کښې
ناست دي دا ننے حالت د باهر نو د ډیرے مودے د پرله پسې (مسلسل)
هر ډول د سیسو، لټ ځیو او لاس وهنے په ذریعه د افغانانو
د اجتماعي ژوند د کمزوریو، خصوصًا د نفاق، ترینګنیو، خود سرۍ
او سرکشۍ زغانده ه آخستو او د هیواد سیاسي او اجتماعي قوت
د وحدت په لار د ودے کولو نه محروم ساتلو افغانستان خپلو
لاسو ته کښېنولو. د دے خاورے د پټو خزانو او طبیعي وسائلو نه
کولو، د دے وطن جغرافیائي محل وقوع د خپلو ارادو او منافعو

د پاره استعمالولو او خصوصاً نننۍ دنیا کښې چه نوی جوړېږي د افغانستان په دغه منطقه کښې د جست تخته جوړولو د پاره دکو ډ اکیو په لاس کښې د ورکولو یو ناوړه خارجي مداخلت او عمل ګڼړي او د استقلال افغانان او س فقط او فقط یا هرنی لاسونه جنګوي. ګڼي نو د هر افغان سترګې غړېدلې دي او س د دې هرڅه که نن هر باهرني لاس، د هر ډول مداخلت نه منع شي، نو هر افغان د هرڅه سره، افغان دے او د یوې ملي اراده، دیني او سیاسي استقلال د تاریخي روحیې سره سم، د یوې ملي جرګې د لارې د یو واحد افغانستان د خاورې د سالمیت او ملت د وحدت او خپل کور او رور جوړولو د پاره لار پیدا کوي. ولې لکه چه ما او وئیل خارجي ملک او طاقت هرڅوک چه دے دا نه غواړي او لکه چه زه و ئیل غواړم خپل غرض دا سې راندہ کړي دي چه د افغانانو په دے ملي روحیه نه پوهېږي او پوهېدل نه غواړي. خو وخت نه د زورور لحاظ کوي، نه د کمزوري خواه مخوا د سمن دے او قدرت په خپلو فیصلو کښې بے نیاز دے. د بدلیدونکے نړۍ د حالاتو رفتار د هیچا قابو کښې نه دے. د دے منطقے وضع او د هیواد والو تجربې بے نتیجے پاتے کیدے نشي. زه به دلته بیا هغه شعر او وایم چه:

خیر دے شخوندو دے پرے د یر او وهي

دا نارموره څوک هضم لے نشي

زما د دې وینا معنیٰ دا ده چه په دې ننۍ وضع د خارجیان نه
دوکه کیږي ، نه دې پخپلو د سیسو او لاسونو مستیږي او
نه دې دافغانانو په هلو، فریقونو او رقابتونو خوشحالیږي.
او دا خوب دې هیڅوک نه وینې چه افغانان به باهرنې طاقت،
باهرنۍ غلبه او باهرنې لاس قبول کړي . دا خو نن ښکلې افغانستان
د سیلانیانو جنت افغانستان کنډواله شو، که خدائے مکه تباه
هم شي افغانان مرګ منی خو غلامي او چاکري نه مني . ملي روحیه
او تجربې افغانان بیدار روي او وخت باهرنې لاس پیژنې
او باهرنۍ چهرې بې نقابه کوي . انشاء الله ډیر زر به بهرنۍ
افغانستان او ملت د ملي، دیني ، سیاسي او تاریخي استقلال
د پاره یوه رائے، یوه فیصله او یوه جرګه کیږي . بله لاره
نشته او نه یې څوک مني . البته د فکر و نظر ، سیاست و
عقیدې، کلتور او عنعنې په بنیا د به رنګ و بو ئیس، حق او
حصه وغیره د هرچا وي ، په ملي چو کاټ کښې به هرڅوک
د رورولۍ او خدمت په اساس دعوې او برخه لري «زوري خوري
به هم وي او حساب کتاب به هم وي » او دغه شان به افغانستان

دنیا ته یو ښکلی او دامن نمونه وي . »

د دې نه پس هغه صیب لاړو خوزه چه حجره کښې کښیناستم

نو هلته م یو بل "مسافر" ناست او لیدل چه سترګې یې را باندې خوږې
او څېره را باندې بلده لګیده. ما ته یې کتل خو څه یې ویلې
نه شول. نو ما ترې تپوس اوکړو "میلمه هر کله راشئ. څه
دې ویل؟" هغه موسکې شو او ووې ویل "میلمه یم او نه یم.
ستا د وینې او مینې رور یم او خپل کور ته راغلې یم، نو میلمه نه یم.
خو پښتون چه د خپل کور نه د بل رور کور ته لاړ شي هم د رور ولې
سره سره یې قدر د میلمه وي نو په دې حیثیت م میلمه اوګڼړه"
هغه چه دا خبره اوکړه نو اوم پېژندو، خو ما چه په کابل کښې
لیدلو د هغې نه ډیر بدل و. ورپاڅیدم سینه م ورکړه او سینه
م په مینه د هغه سره وښلولو. هغه د کښېنا ستو سره او وویل
"ماستا او د دې صاحب د موټر سره ولاړ مجلس واوریدو.
نو ستا په خبره پوهه شوم. ځکه چه ته د کابل نه دې خوا راغلې
او زه هلته پاتې شوم نو د هغې نه پس م ډیر څه چه تا نه وو لیدلي
اولیدل. بیا د ملک نه باهر لاړم. المان (جرمني) سوئیز
(سویزرلینډ)، سویډن بیا انګلستان ته لاړم - ډیر اوګرځیدم
سبه مجلسونه مو سره اوشول. چه سویز کښې ډیره وم نو آخر
موقع په لاس راغله د ډیرو زړو ملګرو او نوو آشنایانو افغانانو
رورنړو سره م اوږده اوږده بحثونه اوشول. د ټولو تجربه
شوې ده او سترګې غړیدلې دي، سو چه افغانان شول - چه هورته

او غورځېدل پاسه ترې جوړه شوه او چې تاو ده سا ره پرې راغلل او په سندان یې د څټک (ړېلک) وار بیا ره ګوزارونه او لیدل، نو فولاد ترې جوړ شوی دی. رښتیا چې نن داحال دی چې خارجیان پرې دومره کېږي چې د خپل غرض آله کار به یې کړو. ولې افغانان خپله دا فکر کوي چې څنګه به د خارجي لاس د دسیسو او د خپل کور او ورور د رور وژنې نه پاک سو چې هیوادوال شول - مړګ به قبول کړي خو پردي لاس نه قبلوي. "

ما د هغه نذیر تېو سره او کړل او د ډېرو ملګرو حال مې معلوم کړو، خو هغه نو رې خبرې لنډولې په لاسو کښې یې "وفا" اخبار و هغه یې ماته ښایه او وئیل یې: " زه د ډېرو ورځو نه پېښور ته راغلی و او دراتلو سره تا ته راتلم، خو ډېرو ملګرو افغانانو ډېرې کیلې مانې کوئ لې، نو چې هغه مې واورېدلې نو کله به مې وئیل چې تا اووینم، کله به مې وئیل چې لیدل فائده نه لري نو ولې دې اووینم. آخر چې ستا یو څو بیانیې او بیا نن مې دې اخبار کښې دافغانستان دکشالې په هکله ستا فکر و نظر اولوستو، نو هغه کیلې مانې مې شاته کړې او پوهه شوم چې ته بدل شوی نه یې، هم هغه "د غیرت دکچنی " درد او سیاست لرې، نو نیغ تا ته راغلم "

ماورته د دې خبرې جواب کښې اووئیل: " خیر دی په خیرو ته هم

مه خفه کیږه اوزه هم نه خفه کیږم . هرڅوک حق لري . دعوه لري په هغه حق او دعوه دخپرو او ګیلو مانې اختیار لري. خو انشاءالله وخت به ډیرے تیرے (تورتم) لرے کړي . ریښتیا هرڅوک به اوویني چه څوک څه وو؟ او درورولئ عمل به چرته ګیلے مانے ختم کړي . چرته به زیاتے کړي ؟ او خدائے د زما هغه وینا رښتیا لري چه د "وینښ زلمی سندره" په عنوان م دنیا ته پیش کړے ده ."

د دے نه پس هغه او وئیل "ستا دا وینا ستا د طرف نه مکمل جواب دے" (زما د "وفا" اخبار او سنیٔ وینا).

ما چه خپله دا بیانیه اولوسته نو هغه ته م اووئیل "تش په وینا ګانو به اونشي . خدائے د عمل په ډګر کښې زمونږ کشاله هواره کړي."

هغه اووئیل: "احساس پیدا شوے دے"

ما ورته اووئیل: "د خدائے فضل پکار دے"

هغه اووئیل: "تور تونل (سرنګ) کښې د رڼا څیره ښکاري."

ما ورته اووئیل: "خدائے د رښتیا او را څرګنده کړي."

هغه اووئیل: "ستا خپله څه رائے ده؟"

ماورته اووئیل :

د خدای په لوی کرم به کیږی

په عقل ګرانه ده زما د جانان مینه

۹

هغه اووئیل : « کرم به په عقل غالب شی که نه ؟ »

ماورته اووئیل :

په تورو غرو نو خدای مُبین دی

په سر یی واوری وروی بیخ کښی ګلونه

● ○ ●

# د ثور انقلاب او

# افغان اُولس

زه په افغانستان کښې وم - دافغانستان حزب دیموکراتیک خلق نوم پارټئ سردار داؤدخان لرې کړو او دهغه په ځائې نورمحمد تروکے رئیس جمهور کړو. او دغه شان دانقلاب ثور په نامه بدلون دافغانستان شاهی نظام خاتمه اوکړه.

ددے واقعے نه لږے ورځے پس مونږ دکابل نه کندهار ته روان شوو هلته زمونږ سوونه بلوڅ ملګری شنځے نو، ماشومان بوډاګان، وارہ لویۍ د مری بلوڅو په علاقه بمبارئ اوفوځی حملے نه راغلی وو او دافغانستان حکومت ورته د هستوګنے وغیره انتظام کړے و. ددے هرڅه نګران زه وم، نو اکثر به دهغوئ حال احوالو معلومولو اوخیرښیګړه کولو د پاره زه ورتلم.

مونږ چه په موټر کښے سواره دغزنی اوقلات منځ ته اورسیدو نو هلته دسړک په غاړه دُکان کښے لږ تم شو. دُکان څه و، دلرګو، غنو، وښو یو څپر غوندے و، پکښے یو سپین ږیرے

ناست وو - مخامخ ورته په يو لوښي کښې گزاره (نسوار) پراته وو.
ده به په يوه کټه پراته ټالکي په يو غونډي کاڼي ميده کول .
د خپلې خولې گزاري يې توکل ، مخامخ لوېږ سړک ته يې کتل
او هر څک راتک کوونکي سره يې سلام کلام کولو- چې مونږ
د ده دُکان مخکښې موټر او دروُلو نو ژ مونږ کوزيدونه وړاندې
زمونږ سره چارې ته راپيا خپدو - سره کلک جوړ تازه او ډک غاړه
وتل يې اوکړل- زر يې مونږ دُکان ته بوتلو - خپل څادر يې
اوغوړولو او مونږ يې په هغې کښېنولو . ډيرې زړې چالاکۍ نه
يې په يو زوړ کټوري (کنډول) کښې اوبه راوا خيستې او په مونږ
يې اوڅښکولې . مونږ نمرسوري کړوو څيړ ته گورو حيرانېږو
چه دا څنګه دُکان دے . د نسوارو د لوښي نه زيات پکښې
يوے ټوکري کښې زړے لس اته گازرے پرتے دی - بل څو ا
په زمکه څو دانې مُولۍ دی ، يو د بلې د سګريټو دے ، څه
لرې ريوړ يۍ دی ، خوا کښې چای جوش دے او لوټکے ترے
خپرې - دوه مات کوړه غونډه چائنکونه دی او يو څو بلغمي
پيالۍ دی . شاته زاړه برستن تولا يې په يو سوري سوري
تغر کښې گډوډ پراته دی ، دا لکه د ده بستره ده. ولې دد
هر څه خپرې او وران ويجاړ دُکان د ننه دا ماما سره خوشحال
اومست ناست دے او ځان ورته خان ښکاري يا مونږ ميلمنو

ته يې ځان کښې خاني پيدا کړه. چه مونږ کښېناستو او اوبه مو وڅښلې، نو سړے را ته خوند ناک ښکاره شو او ورسره يوه لحظه خوند مزه آخستو دپاره مو يو بل ته د لږ ساعت تېرولو اشاره وکړه. مونږ اشارے کوُلے او ده په اوچت آواز مونږ اوکړو « يه لورے! په جلئ. سپيرے زر راشه » مونږ چه مخامخ اوکتل نو د يو پټئ (فصل) نه يو لس کلنه جلئ ښکاره شوه. په دے کښې دے ما ما مونږ نه تپوس اوکړو چه ميلمنو! «تاسو د پېښبور خونه يئ » مونږ جواب ورکړو چه يو. ده اووئيل دکومے علاقے؟ مونږ ورته وئيل د نوښار، نو وئيل يئ « ښا زه هم د کړو سر د بر ځله زاخيلو، بېريا يي اونوښار ته تللے يم.» په دے کښې يئ لور راورسيده، هغې ته يئ په غصه غوندے کښې اووئيل: ورشه سپيرے زرکور ښې چائے پخے کړه. د پېښبور ميلمانه راغلي دي.» د دے سوال جواب سره سم مونږ جواب ورکړو. ماما مونږ چاے نه څښسو - کار مو دے، زر کندهار ته ځان رسوو- ولے ماما راپورے او نښتو. لنډه دا چه ښې چايئې يئ را باندے او څښکوُلے.

مونږ چه چايئې څښلے نو دده نه مو تپوس اوکړو « ماما دلته انقلاب شوے دے - ته خير يئ؟» هغه زر جواب راکړو انقلاب منقلاب باندے زه نه يوهېږم، خو دُرانيان ورک شول او

شکر دے غلجي راغلو ، اوس به افغانستان ګل ګلزار شي .»

ددے ماما نوم محمد و . موږ چه کندهار ته واپس راتلو نو محمود دجرګے سره کابل ته د غلجي نور محمد ملاقات ته تللے و ، او لور يئ «ګلئ» ناسته وه . موږ ورته اودريدو ، هغې په حياناکو سترګو موږ ته اوکتل او موږ ته يې دغرګے نه ډک جام شوملے راکړے ، موږ په وار وار وڅښلے ، محمود ته مو سلام پريښوو او روان شوو .

* * *

چه د محمود دُکان ته موږ د کندهار په لور تللو او شهر صفا ته اورسيدو ، نو بيا تږي شوي وو ، د سړک په غاړه يو سپين زيری دکوکاکولا وغيره دُکان لګولے و ، هغه ته اودريدو او بوتلونه موترے او څښکل . دلته ما دده نه تپوس اوکړو «ماما وايي چه په کابل کښې انقلاب شوے دے ، ستا څه خيال دے؟» هغه غُصه شو او ويئ ويل «انقلاب پدر مرے نه دے ، آخره زمانه ده ، دغلجو باچاهي راغله ، مشرانو به ويل چه اخره زمانه شي نو يو به د غلجو باچاهي راشي ، بل به جدال (دجال) راشي .» ما دده نه تپوس اوکړو ته غلجے يئ ؟ هغه دغُصے نه تک سور شو ويئ ويل : «ما دِ خدائے غلجے نه کړي ، زه دُرانے يم ، درانے ذُر دران» . زه پوهه شوم چه که نور يئ چيړم نو به ګلاس

م دا سرماتوی. درانے ماما د غلجي په باچاهئ دومره خفه او غصه دے چه نه میلمه پیژنی نه کوربه.

✦ ✦ ✦

چه کندهار ته اورسیدو او شپه مو د والی صاحب (گورنر) په بنگله کښے په خوند رنګ کښے تیره کړه، نو سحر چه لچه غرمه شوه، نو د بازار په سیل روان شوو. موږ وئیل چه اوګورو دلته څه فضا ده. خدائے کول چه د بازار په منځ کښے هغه یارچه فروش (د کپړے دکاندار) ولیدم چه پروسږکال م ورسره دلته په دے دکان کښے د کرکو (مرزو یا بټیرو) گپ لګولے و. د دکاندار نوم باز ک و.

باز ک د خپل دکان په تړه ناست و، په پنجره کښے بند ولاړ تور تار و سره یئے د ناز ناز خبرے کولے او په خوا کښے پرتو د کرکو څلورو پنجرو ته یئے کتل. چه زه یئے اولیدم نو هرڅه یئے پریښودل، را پاڅید و ما سره یئے د ہر په مینه او جوش ہړوکړ وکړل او را نه پتوس یئے اوکړو "لالکه ته هغه پیشورے خو نه یئے؟ ما وئیل "یم". د دے سره یئے په چغه بل سړی ته آواز ورکړو "وا پتنګه زړ یئے ږ مړ سه، راسه هغه پیشورے راغلے دے"
او د دے سره یئے زما خوشامندے شروع کړے، ځکه چه ما تیرکال د ده د کرک (مرز) آواز ته د ده د خوشحالئ د پاره توله بازار کښے

تر ټولو آوازونو غوږ ونیولی و. او دے مست شوے و، ویلی یئے وو پیښوریان د کرکو په نغرو د برښنه پوهیږي. په دے کښے پتنګ هم راورسیدو هغه هم ماسره ډیر په جوش او خوند جوړ تازه اوکړل او دوا ړو ماسره ډیرو سګال په شان نن بیا د کوترو، تنزرو، تارو کانو او بټیرو مجلس شروع کړلو، خو زهٔ پرے اول شوم، ورنه مې تپوس اوکړو: « دلته افغانستان کښے انقلاب شوے دے ستاسو خبر یئ؟ او څه حال لیدلے دے؟ » هغوئي ماته حیران اوکتل او وے وئیل « پیښوریه! خیل کارکوه دا د باچاهانو خبرے دی، کله به نادر راځي، کله بچهٔ سقاؤ، کله ظاهر، کله داؤد - اوس وائي ترہ کي راغلے دے، راغلے به وی او ځي به، دا داحمد کاکو سلطنت دے، څوک به ځي څوک به راځي - کندهار به وی ګل ګلزار به وی - اوس وایه دا سے ښکلے نور تارو پیښور کښے پیدا کیږی؟ » مالا جواب نه و ورکړے چه والی صاحب راپسے راورسیدو او موږ کښے یئے سوال کړو، روان شو، باز که او پتنګ ته مو د رخصتید و سلام اوکړو خو هغوی به تر یو تندی لا واخستو لا نه - البته موږ واوریدل چه وے یې وئیل « دا یئے والے (والی ته د حقارت نه والے وائي) دا یئے پیښوریان »

* * *

سبا جمعه وه - دکندهار د سرپُل دجمع میله یوه د ننداړو، مزو او سیلونو، مجلسونو تاریخي ثقافتي ننداړتون وګڼئ - چه بل ځایئ مثال نه لري. د سپو جنګول، دچرګانو جنګول، دمرزانو جنګول، ګډا ګانې، سندرې، تماشې، میلې، خوراکونه، کبونه، ټوقې ویشتې، شعرونه، لطیفې، جنګونه، مقابلې، د زلمو د سائیکلونو ریشونه، دتانګو ریسونو، یوبل پورې خندل، د سیلانو سیالئ، دزلمو مستئ څه، څه به یې یاد کړې. رښتیا چه کندهار کندهار دے، خو ارمان چه بلخ وبهار شي.

مونږ سحر وراغلو او دورتلو سره د یو څلوېښتو ښکلولو په جمع ورواوختو، دے ټولو زه وپیژندم. یو یو ماته راغے راغاړه وتو او بیا ټول سره کښیناستو، میوه دانه یې رامخکښې کړه، خو مونږ لا څه څکلي نه وو چه یو دغشي په شان تیغ تیغ زلمے پاڅیدو، نیم څادر یې داوږے شا لورې ته کوزار کړو او ماته یې اووئیل «خټک صاحب! ته هم دے ته انقلاب وایئ؟» مالا جواب نه وو ورکړے چه نورو زلمو هغه خوله خوله کړو. زه یې هیڅ جواب ته پرېښنوم. البته هغه زلمے م اوپیژندو چه د «افغان ملت» کدر او فعال کارکن وو. او زما ډیر نږدے او خوږ ملګرے وو. خو اوس زمانه کیله من وو.

مونږ لږ ساعت دهغوئ د ډېرو ولړ او میلمستیا خوند واخستو
بیا پاڅېدو چه اوګرځو نور سیل اوکړو. رخصت مو واخستو روان
شو، خو دا زلمے راسره پاتے شو، راته یئ اووئیل «خفه نشے، چه
ته مِ اولیدے نو احساساتي شوم، نور دِ هغه شان رورېم.»

د دوئ ته وړاندے د میلو او مجلسونو منځ کښې تېرېدو چه
مخامخ دَ نورو ځوانانو یوه لویه ډله ناسته په نظر راغله. هغوئ
ته چه مونږ ورښکاره شو، نو ټول راپاڅېدل او زمونږ هرکلی ته
راوړاندے شول او په ډېر عزت یئ د ځان سره کښېنولو، لکه
چه دوئ د لته زمونږ د میلمستیا انتظام کړے وی. چائے تیار
وے هغه تقسیم شوے، څښکل شروع شول، خبرے منځ ته راپورته
د یو خوانه خبره شوه «انقلاب وشو، خو انقلابي چوکاټ جوړ
نشو» بل خوا غږ وشو «انقلاب د ځان او فریکسون د پاره»
بل لوری صدا راغله «اصیل انقلاب دا صیلو انقلابیانو په لاس
کامیابیږي» دے ټولو نه لمو زمانه په دے خبره تبصره غوښته
خو زه حیران شوم چه د کندهار په میلو کښې دا په کومو تېیلو
واؤرېدلم. ښه شو چه والي صاحب په دے حالت کښې پوهه شو، نو
هغه زه د دوئ نه روان کړم. ولے دوئ هم راسره روان شول. تر
دے چه یو بل د غه شان د ټولمو ټولی نه یئ ورننز دے کړم.
هلته یئ زمونږ د یو یو نه رخصت واخستو. هغوی بیا خپل ځائے

ته روان شو او مونږ دغه بل ټولی راګیر کړو. په دغه دوران کښې هغه روان رخصتیدو نکو زلموکښې یو زلمي مونږ ته مخ راواړولو او په زوره یې اوویل: «د غیرت څښتن انقلاب راوستو خو انقلاب دغیرت څښتن خاموشه کوي.» د دې ټولی نه یو څو تنو خولیو نیولي زلمي جواب ورکړو: «واتاسو به هر مظاهره په غیرت څښتن کړوله، خو اوس یې تاسو سمروئ.»

زه هم پوهه شوم، زما ملګری هم پوهه شول او زمونږ ټولو نه زیات والی صاحب پوهه شو چه که زه نور دې باغ کښې پاتې کیږم او دا زلمي م ویني، نو دا خوکندهاریان دی، نه د والی لحاظ کوي، نه د قوماندان. هسې نه څه شر جوړ شي، نو زه یې ژر دباغه وابستم هوټل ته یې بوتلم، هلته یې یو کوټه کښې راباندې چایې او ښنبکوئلي اوکړ ندے کړندے یې واپس خپلې بنګلې ته راوتم دلته راته والی صاحب ووئیل چه دا حزبیان وو، دوئ نن صبا ډیر ګرم دی.

زه چه د شپې د والی صاحب بنګله کښې په ډیر استراحت کښې پروت شوم، نو خوب نه راتلو. د محمود غلجي، د شهر صفا درآئي، د کندهار د بازار دکاندار او سړئ کښې د حزبیانو خبرے راپا دیګے او د نور انقلاب اعلانونه راته مخکښې کیدل، نو حیرانیدم چه دا د ثور انقلاب د چا دے؟ آیا د کے خلکو دے او داخلک څوک دی؟ د کے ثور دا انقلاب دي؟

راځئ چه د کے سوال جواب نن د ویښو لیکي او هوړشو افغانستان نه او پیښتو.

# ډپلومیټ او افغان ننګ

نن چه زه د "دولت مشترکه پارلیمانی اجلاس" کښې د شاملیدو دپاره د کراچۍ نه دوبۍ ته اورسیدم او د هلته نه په طیاره کښې د جوهانسبرګ (سهیلی افریقے) په لور روان شوم، نو لږه شیبه پس یو ښه جوړ جوړ لے ځوان، چه پوره "بوټه سوټه" (درېشی کښے) و، زما نشست ته راغے. ماسره ناست زما ملګری ته یې اوویل چه ته مهربانی اوکړه، ماته د لږ وخت دپاره داسیټ راکړه. زه دده سره یو څو خبرے کول غواړم. زما ملګرے د هغه په دے خواهش پاڅیدو او هغه ماسره کښیناستو. خپله پیژندګلی یې راسره اوکړه او خبرے یې شروع کړے. د پښتو خبرو نه یې ما اندازه او لګوله چه څوک پښتون دے، خو وخت یې د پښتنو د ماحول نه باهر تیر کړے دے. دده خبره دا وه چه که اجازت وي زه ستا نه د افغانستان د شخړے په هکله یو څو پوښتنے کوم. ما جواب ورکړو: "ډیر په خوشحالۍ یو نه شل پوښتنے خو اوکړه."

د هغه او له پوښتنه داوه: «ستاسو څه رائې ده چه د افغانستان د مسئلې به څه کیږي اوڅه به او شی؟»

ما ورته او وئیل: «که ته نه خفه کیږے اوڅه مصلحت مانع نه وي لږ خپل تعارف راسره اوکړه چه ستا د تعارف په بنیا د تا سره دلسے خبرے اوکړم چه سره پوهه شو.»

هغه ځواب راکړ: «زه په وینه پښتون نه افغان یم. خوهرکله چه پلار مې سیاستدان وو او بیا ډپلومیټ شو او زهٔ د هغه په سرپرستئ کښې لوئې شوم نود ملکه باهر مې تحصیل (تعلیم) اوکړو. بیا په سویټزرلینډ کښې او سیدم، اوس امریکا کښې په کیلی فورنیا کښې اوسیږم. خو د امریکې د یو عالمی سیاسی خبریال (اخباری) تحقیقی او مطالعاتی ګروپ سره کار کوم، نو زیات په واشنګټن او نیویارک کښې اوسیږم، او د مطالعې دپاره دګروپ د طرف نه د دنیا هرکوټ ته چه پکښې شخړے او مسئلې وی، ځم راځم. دغو ورځو کښې د جنوبی ایشیاء د ځانګے سره د دے منطقې د معضلو مطالعې ته رالیږلے شوے یم. په دے لړ کښې ماته وسیلې شوی وو چه ولی خان ضرور اووینه، خو هغه په لنډن کښې دے او زه هلته روان یم. اُمید لرم چه هغه سره به هلته مفصل مجلس اوکړم، خواوس مې ته اولیدے او ته د کابل د تاریخ او ننئ پیښبو نه ښه خبر یې. ما چه تحصیل کولو نو ستاد "غیرت چغه" او "مسافر"

م لوستی دی او بیا ستا د مصروفیتونو او افغانستان کښې ژوند
او هلته تعلقاتو او دهغه ځایه باهر دُنیا سره رابطونه م
ځان خبر ساتلے دے. نو غواړم چه دا موقع غنیمت او کښېنم او
تاسره د افغانستان د نننئ وضع او مستقبل په هکله
مجلس اوکړم. خو یقین لره چه زه هر چرته چه لوئے شوے
یم او هر چرته چه ژوند کوم او هر مصروفیت چه م دے، وینه
او مینه م د افغانیت ده. لباس ته م مه ګوره، وینه م نظر
کښې اونیسه."

ما ورته اووئیل چه ستا په وینے او مینے م پوره اعتماد دے
هغه هم بنیادی خبره ده. د سیاسی نظریئے او خصوصاً د
افغانستان د مستقبل دپاره مونږ هرچا سره یوه او سپینه خبره
کوو. ځکه چه لکه د نمر مخ سپین دے، د پښتنو د سیاست
خبره سپینه ده. او لکه چه د دوه نکتو تر مینځه مستقیم خط
صرف او صرف یو کیدے شي دغه شان رښتیا او صفا خبره هم
یوه وي.

د دے نه پس هغه اووئیل چه زما د سوال په هکله خپله رایه
اوښایه؟

ما ورته اووئیل چه د افغانستان د مسئلے به هغه کیږی چه
افغان ملت ئے دغه فرق او امتیاز بغیر په خپله مستقله رائے

او اراده دهر دول خارجي مداخلت نه آزاد به ملي روحيه او جرګه غواړي . او کيږي به هم هغه چه د غښے او شي ."

هغه سوال اوکړو : " آيا تاسو دد ے نه انکارکوئ چه زوړ تاريخي ، اجتماعي ژوند کښے بدلون او باهرني لاسوهنو او نن اوسنئ پيښو هر څه بدل کړي دي . نن هيواد او هيوادوال په دول دول جدا شوي ، مختلف شوي ، ډلے ډلے شوي او د يوبل مرئ ته يئے لاس اچولے دے . او ملت ګډوډ ، تس نس ، بلکه د رور وژنے په لاره خراب تراب شو . وحدت تش نوم دے ، عمل کښے سراسر انتشار او ځان ځاني ده . نو داسے حالت کښے به ستا په دے وينا څنګه عمل کيږي ؟ "

ما ورته اووئيل چه دا ته چه څه وينے ګورے او تا ته چه څه ښکاري دا سطحي خبره ده او يو عارضي ( مؤقتي ) پرده ده چه د غير لاسونو او زمونږ نفاق په مونږ غوړولے ده. د دے لاندے تر دے وخته ملي روحيه هغه شان لا يوه ده . او هر څوک چه دا " ملي روحيه " هيروي ، هغه د خپل غرض د پاره د حقيقت نه سترګے پټوي ، يا خو د فريبي (ځانته خپله دوکه ورکولو) مرض کښے مبتلا دي .

هغه اووئيل : دا څنګه وايئے . عملي وضعه د دے خلاف ده . نن د افغانستان نقشه کښے ستا دا خبره د زوړ ماضي خبرے

یو خیالی مطالعه او فقط یو نیک خوب دے او بس.

ما ورته اوویل چه د خارجي دسیسو، کوششونو، لاسوهنو او پرو پیګنډو په چشمو (عینکو) چه ورته څوک ګوری، نو هغه شان ورته ښکاری لکه چه ته وایئ، ولے چه که څوک په حقیقی سترګو ورته اوګوری، نو داسے نه ده.

هغه اوویل: ته داسے څنګه وایئ؟

ما ورته اوویل چه په ساده ژبه به اووایم چه دے کښے شک نشته چه د کله نه دروس دا میراتوریځ او د برطانوی استعمار مقابله راغلے ده او دد ے رقابت او مقابلے میدان ایران، افغانستان، مرکزی ایشیا او هند جوړ شوید ے، په دے لړ کښے هیواد او هیواد وال ددویئ دسیاست او ډیلومیسئ د شطرنج ساځ شو او ددوئ د هیواد او ملی وحدت خلاف هر ډول سازشونه د هر لوری نه او شول، د هغے نتیجه ده چه نن افغان او د هغه کور وران شو. ولے دا هم حقیقت دے چه که یو خوا د خارجی سیاست د زور او زر حملے وے، نو بل خوا دا فغان ملت د لښکرو او ملی روحیئ د فاعی هلے ځلے وے دا هرڅه چرا اوشول نتیجه یئ دا شوه چه افغانستان یئ د عالمی بدلونونو او ترقئ نه پاتے کړو او دلته پټ لاسونه فعال شول. خو ملی روحیه، ملی وحدت او جرګه یئ ورک نه کړے شول او د ملت د سیمو، نژادونو

ژبو، عقیدو اونظریو تر مینځه دبیل بیل رنګ او ژوند دهڅا خپلو خپلو احساساتو سره سره دنادرشاه خان نه را خلې ترداؤدخان پورې د دربار نه وا خلې تر جماعتونو، حجرو، کلو او قلاع ګانو پورې دملی ژوند چوکاټ یو وو. په کور کښې به لوبنی سره جنګیدل او کړنګیدل، خو کور او اور یو وو. دکرسۍ په بدلون به اختلافاتو سر او خوځولو او دسیاست په ډګر به رنګ رنګ جنډے اوربیدے، خود ملت دسیمو، نسلونو، ژبو، اوعقیدو رورولي قائمه وه. په سیاسي نظریو به تنقیدونه او بحثونه کیدل، خو تنقید کوونکی او بحث کوونکی دیوی ملی ورورولۍ نړوتلی نه وو. هرڅه چې یې وئیل اوغوښتل، د ملی ورورولۍ د آبادۍ او خوشحالۍ یو هدف یې لرلو. هرچا چه دغه شان بیل بیل پروګرام لرلو په هغې کښې دټول ملت دهرے سیمے، ژبے عقیدے وغیره خلک شامل وو. ملی یووالے او ملی روحیه هیچا هیڅ وخت چیلنج کړے نه ده. پښتانه به دغیر پښتون افغان کورته لکه د ورور ورتلل، شیعه به د سُنی سره رورولۍ شریکه چلوله. په اجتماعی کلیوال کورنی ژوند کښې غم ښادی، ورکړه راکړه او عزیز ولی دټولو تیګکه او داتحاد وه. چه خپلو کښې به چه څټیښه راغله، پخپلو کښې به یې په شریکه جرګه، شریعت او عنعنه لکه د ورونو هوار وله او چه ملی یا خارجی مسئله به راغله

ملت به ورته یو موټي و. دڅوند او ریاست هره شعبه کښې
ښو لو برخه لرله او قربانۍ يې ورکوله.. ما چه دوهره او وئيل
نو هغه زما نه خبره واخسته او وې وئيل : « دا چه د شمال
او جنوب، ستم او غلبې خبرې کيدې تر دې چه افغانستان پارلمينټ
کښې هم په دې موضوع سخت اختلافات مينځته راغلل او کتابونه
ليکلې شوي دي؟ »

ما ورته او وئيل چه دا خبرې رو رو را ننو تې، خصوصًا
زلمي تعليم يافته کهول کښې د نوي دور د بيدارۍ پاروللو او
باهر نی تحريکونو، فلسفو او ټوټوټو د نظريو اختلافاتو افغانستان
کښې سرايت اوکړو او په زياتيدو وو. خو د دې ټولو هدف
لکه ما اوس او وئيل د افغانستان وحدت، د ملت خوشحالي او
د مستقبل استقلال او استحکام و. او په دې هکله منزل د ټولو
يو و خو منزل (سفر) جدا جدا. ما ورته او وئيل چه ما سره
هغه وخت د دې بيلو بيلو ډلو او پروګرامونو مشرانو او بډه او به
بحثونه کړي دي، يو هم په کښې هيڅ ډول/ د بلې رائې نفرت
بدعت، افراط تفريط، بد لون او کړ ليچ ته نه پريښې دی.
په خيله ملي روحيه دا د کتاب وسُنت روح او عمل سوچه ساتي
او هيڅ يو افغان د تاريخي افغانستان د ملي وحدت او شريک
مستقبل خلاف نه و. البته چه د ګرم جنګ په ځائے د سوړ جنګ

پالیسي په دنیا دبیل بیل عالمي او علاقائي قوتونو د رقابت ریښې
خورې ولې او د بم په ځای کتاب ، د مسلح حملې په ځای د تبلیغ جنګ
شروع شو، نو افغانستان ته هم دا سلسله راورسوله شوه او دلته
زموږ ملي فضا کښې مائیکروب (جراثیم) را ننوتل او هغې خرابې شروع
کړو ، خو هغه د هیڅ طرفه په خاوره او ذهن غلبه حاصلولو او ملي
روحیه ختم کولو کښې کامیاب نشول ، بلکه تر دې چه وخت د هغوی
د (غیرو) د هر چا د هغه په خپل کور کښې علاج شروع کړو . دا
ثابته ده چه افغانانو هغوی ته منلی وو او نه مني . د دې
بل اړخ دا دی دا مائیکروب دیو قوت د لاسه او دیولوری
څخه نر اننوتل ، د هر طرف نه را دا خلیدل . خو چه لویه چپه
یې راغله او افغانانو هغه او نه منله ، نو دیر سبق ترې حاصل
شو . او افغان مړ شو ، خو پړ نه شو او پړ نه دی ، تر دې چه په
ملي روحیه خړ هم نه دی . « ما چه تر دې خبره او کړه ،
نو هغه بیا زمانه خبره وا خسته او وئیل « آیا ته د افغانستان
ملي روحیه کښې اسلام شامل نه ګڼې او په دې لړ کښې اختلافات
نشته ؟ »

ما ورته او وئیل که تر دې ساعته څوک لړ ملي روحیې
اسلام او باسي هغه د غه روحیه نه پیژني . او داسې خلک چه
اسلام د ملي استقلال د روحیې نه او باسي هغه هر څوک چه وي

افغانستان جو ړول نه غواړي. او ځان ته به تاوان پیښوي. ولې
افغانستان د قرآن و سنت په روح او تعلیماتو داسې سوچه او کلک
ولاړ دے چه په ملي چوکاټ کښې سوچه تر بره پورې رسولے
او تر ننه ساتلے دے، بلکه جمال الدین افغاني تر مصر، شمالي
افریقه او عربستان رسولے دے. هغه اسلام کښې رواداري
شته او ډیر ده، خو په کتاب او سنت په دین او شرع کښې -
مداخلت، تجاوز د خپل اقتدار یا سیاست د پاره انحرافي
تاویلات نشته. د فقهي اختلاف د اسلام اختلاف نشي کېدلے
کیدے. په دے بنیاد د مسلمان خلاف د مسلمان جنګ خونریزي
د اسلام خلاف ګڼي. او په دے ملي اسلامي چوکاټ کښې د
افغانستان مسلمان یو و. البته چه د دین، اسلام او شریعت
په ډګر کښې د عالمي او سیمه یزو رقابتونو لاس د سیاست،
ډیپلومیسۍ او نوي عالمي حکمت عملي په خدمت کښې د خپلو
عزائمو او منصوبو چالونه شروع کړل. او هر کله چه افغانستان
د دے ارادو او پروګرام ډیره مهمه نکته وه. نو دلته هم د
د افغانستان سوچه او روغه اسلامي فضاء کښې بیلے بیلے ګوتے
شروع شوے. افغانستان د ثور تر واقع پورے دغه هر څه
خپلے ملک و ملت کښې غلبے ته نه وو پریښي، نو افغانستان په
دغه میدان کښې لا سالم او محفوظ وو. ولے چه روس د

کمونیزم سره راننوتو، نو امریکه ورپسې د خپلې ډانګ د ساتلې
سره راغلو. د روس سره یو نظریه وه، چه د هغې مقابله وسلې
نه شو کولې، د هغې د هلو دپاره نظریه او عقیده پکار وه او د امریکې
په نظر کښې د کمونیزم د نظریې خلاف د اسلام عقیده ډیره مؤثره
حربه وه، نو هغه دا وسله استعمالول شروع کړل. د هغې نتیجه دا شو
چه تر دغه وخته پورې دافغانستان په ملی چوکاټ کښې
چه کوم اسلام پاندې عمل او اتفاق و د هغې په ځاے بیلې بیلې
جنډې پورته شوې، چه ترڅو اتحاد شوروی و، نو د دې
ټولو ضرورت داؤ چه دا ټول د په هغه ډز ،کوی، ولې
چه هغه ټکړې واوښتل شو او په هغه نن د ډز کولو ضرورت
پاتې نه شو او نوې پالیسی شروع شوه، نو اوس د پخوانی
سوویت یونین یاناړو نو ته او د هغوی ذهنونو او فکرونو ته
د رسیدلو او خصوصاً د مرکزی ایشیا جمهوریتونو سره
روابط ټینګولو دپاره د نوې پالیسۍ ضرورت دے د هغې
مطابق دافغانستان نه پکل جوړولو ته احتیاج دے او
بیا د هغې دپاره د هغه چا او د هغه جنډو، نعرو او فتوو
په ځاے د نوی قسم حربو ضرورت دے، نو اوس فضاء بدلیدل
غواړی.

خارجی طاقتونه او لاسونه پوهه دی یا پوهه شول چه که افغانان

بې دخپل دشمن خلاف جنګول نو افغانان هم په دې پوهیدل چه د غرب ملکونه وغیره د خدای دپاره، د اسلام دپاره، د افغان او افغانستان دپاره او د جهاد دپاره په هر ډول بې حسابه بې کتابه کومک نه کوی، بلکه د وی دخپل غرض دپاره استعمالوی، ګنې د دوی (افغانانو) اسلام او افغانیت دهغوئ خوښ نه دے او هغوئ پوهیدل چه د دوی ملی روحیه به د مستقبل دپاره د خارجی ارادے او سازشونو لاره کښې خنډ کیږی. نو داسے افغان اولس د روس د حملے خلاف په خپله ملی اسلامی جذبه را پاڅېدلی و (کار کړلو او داسے ګڼله چه د "لوے بلا" (روس) نه خلاص شو) او باهرنو ملکونو د دوئ هر مد د په دے پالیسئ کولو چه به اول به په دوئ روس او وهو، بیا به دوی سره ګورو.

دواړه (خارجی لاس او افغانان) یو بل ته غلط وو او هر یو خپل غرض موحق کښې نیولے و. ولے د دواړو ستر ګے پټے وے.

ولے په دے دوران کښې هر افغان، هر څوک چه د ے او پروون چه یے هر څه کول او وئیل او نن هم چه هر څه وایئ او کوی، د ټولو دسترګو وړاندے ټول څهرے بے نقابه شوی دی، هر لاس کښې ورته دګوړے په رنګ کښې زهر

ښکاره شوي دي، سترګې يې غړيدلې دي. نن ټول که په ظاهره مجبور دي يا ضرورت دے يا د پوره رښتيا انتظار کوي يا څه بل څه وجه ده، حتمو افغانان سر هر څنګه چه خوځوي زړه يې د افغانانو د ملي ديني تاريخي روحيې د غلبې او ذهن د باهرني لاس نه خلاصون او د کورنۍ جرګې د فيصلې د ارادے په لور دے. دلته هغه بيا تپوس او کړو :

„ستا څه خيال دے، نن افغانستان کښې د نژاد، لسان (ژبې) عقيدے، ولې او علاقې دا اختلافات او جنګونه ساده کار دے؟ ملک يې تباه نه کړو؟ او صلح او امن ته چه غاړه نه کيږدي، نو دغه کورني اختلافات نه دي؟

ماورته او ويئيل: „نا - ساده نه دي، ډير زور دي، بلکه زه خو وايم چه دومره پيچلي شوي او سخت شوي دي چه عقل ته د دوي حل ګران ښکاري. صرف د خداے فضل يې اسانولے شي. ولے زه دا وايم چه دا فساد د باهرنو دلاسه دے. که باهرنے لاس قطع شي او افغانان خپل کور او رور جوړولو د پاره پريښودے شي، نو ترڼ ورځے د دوئ ملي ديني مستقله روحيه مړه نه ده. دوئ د صلح او امن لاراسلے شي او په هغې روانيدے شي يا کم از کم د جنګ او رور وژنے په ځاے د روغے جوړے په سمت کامونه پورته کولے شي.

هغه اوویل «عفوغواړم، زه ستا په خبره پوهـ
شوم، ځکه چه د افغانانو کورنۍ بې اتفاقۍ خو باهر نسي
لاس ته موقع د مداخلت ورکړې ده او ننۍ افغانان دومره
ړلې دي، دومره فـریقونه دي او یو بل سره داسې جنګیږي
چه د صلح او امن خبرې ته غوږ نه کیږدي حال دا دې خبره
او منې یا ترې ته سر اوغړوي او منګګړي یې حیران کړي دي
چه څه اوکړي او ته دا وایې چه باهرنۍ لاس قطع شي نو د
صلح په لار به روانې شي.»

ما ورته اوویل: «عزیزه! افغانان په کور کښې هرڅه
چه وو، وو به، خفګان به پیدا شوې وي، اختلاف به پیدا
وي، ولې افغانان چا پسې تللي نه دي، چه را شئ زموږ
روغه اوکړئ او نه ورته ددې ضرورت وه. هیڅ یوهاو
باخبره منصف نړیوال ددې حقیقت نه انکار نشي کولې چه
د دُنیا قوتونو او همسایه ملکونو د خپلو سیاسي او ارضـي
لوړبې د سرولو دپاره یا د رقیب قوت مخه نیولو دپاره
د افغانستان خاوره استعمالولو په غرض په ماضي کښې مداخلت
کړې دې او دا کوشش یې کړې دې چه دا خاوره قبضه
کړي خو په هغې کښې څوک کامیاب شوي نه دي، نو نن
ورتیري کوونکو (مداخلت کوونکو) مصلحت دا وه چه قبضه

نشي کيدے نوکور او رور يۓ وران کړئ ، خپلو لاسونو ته
يۓ کنبيونئ او د خپلے مرضئ داسے کوډاکے پرے مسلط کړئ
چه قواره يۓ د سوچه افغان ښکاري او اراده او عمل يے د
هغه غيرو (خارجي يا همسايه) ملکونو داشارو تابع وي .
او دا د تيرو دوه دوه نيمو صدو او نن دافغانستان
تاريخ دے (او ددے نه مخکښے د دوی او باهرنو د حملو د
سيلابونو د زړه قيصے نه پاتے رو حيات د ی . )
په دے ډول خارجي لاسونو د دوی د قبيلوی ژوند د تاريخي
او سماجي رقابت او فرق بخروته پۇکی ورکولو سره د دوئ
هغه تاريخي ملي لښکر نس نس کړے دے او هغه قوت يۓ
ختم کړے دے کوم طاقت چه که بيا به زورآوره حمله او کړه
او د دوی يوه علاقه يا حصه به يۓ واخسته او هغې کښے به
يۓ د دوی دويرولو دپاره د دوئ د سرونو منارے جوړے
کړے ، ولے چه هغه د وينو سيلاب به تير شو ، نو دوئ به
بيا را پا خيدل . لودی ، غوری ، غلجي ، سوری ، درانی وغيره
به بيا پښتون جرګه او پښتون لښکر يا افغانی قوت شو او
په يو آواز او يو مشر پسے به روان شول . خپل کور به يۓ
د دښمن نه پاک کړو او په منطقه به تر لرے خوارۀ شول
بادشاهئ به يۓ جوړے کړے او ښے به يۓ په پيړيو پيړيو

او چلولے . دا بیله خبره ده چه نن څوک وئیلے شی چه د دهلی تخت نیول او بیا د پښتو نخوا دغرونو یادیدل او پریښول څه معنئ لری . په هند کښې سوونه کاله حکومتونه سازول او کول او خپل کور ( هیواد ) کښې دا سې حکومت نه قائمول چه خپله خاوره او ملت د تاریخ د تیرو نه راووځی او د نوی تهذیب او نوی د تاریخ په لاره روان شي . دا داسې سوالونه دی چه دهغه وخت د سیاسی ، اجتماعی او قبائلی ژوند د روحیاتو بحث پرې کیدے شی او پکار دے چه اوشی . خو دلته ئې موقع نه ده . دلته خو زما دوینا مطلب دا دے چه زوړ تاریخ کښې په ډیرڅه دغورو فکر ، بحث و تنقید وی او نوی تاریخ کښې هم شته . خو بقول ملی تاریخ کښې دا خبره جوته ده چه په دے هرڅه کښې د « ملی استقلال روحیه » چا ختم کړے شوے نه ده ، بلکه هرڅه به چه اوشول دے روحیے به بیا په اتفاق جرګه او لښکر جوړ کړو . یعنی افغانستان باهرنی چپاوونو وران کړے دے ، خو ملی روحیه یئے ورله لرے کړے شوې نه ده . او هر کله چه بیا دغه ملی روحیےته د هر باهرنی سیلاب ، چپاوئ ، طوفان او حملے نه پس د سر پورته کولو موقع راغلے ده ، سر یئے راپورته کړے دے . دغه شان نن هم دغه ملی روحیه ورکه ( مړه یا ختم ) نه ده

که بیروني لاس ووځي ، نو داخپل کارکولے شي .

هغه چه زما دا وینا واوریده ، نو ویل ویل چه ته څه وایې .چه زمانه بدله شوې ده، سائنس او تخنیک هرڅه بدل کړی ، نو دافغانانو ملي روحیه ولې نه ده بدله کړې؟

ماجواب ورکړو : ستا څه مطالعه ده چه نړۍ عالمي تمدن ددې تولے کړے په هرمیدان ، غر، دره او هر کوټ یوشان عمل کړے دے . که دهرے علاقے ، طبیعي تاریخي ملي ژوند او روحیاتو دتاریخي بدلون په مناسبت جدا جدا اثرات مرتب کړي دي؟ چرته دغه سائنسي، تخنیکي او تمدني بدلون ډیر زیات رنګ راوړے دے ، چرته لږ او دا سے کوتونه او جزیرے هم شته چه هلته یې ډیر لږ او سطحي اثرات غورځولي دي ؟"

هغه او ویل :" هو ! یوشان عمل او نتایج یې نه دي لکه چه ته وایې فرقونه لري او ډیر فرقونه لري . " او دد ے سره هغه او ویل : " بس په دے معنی پوهېږم او س بل بحث کوم . "

ما ورته او ویل: " هر بحث چه کوے او کړه ، خو دهغې نه مخکښې لږ ننني نقشے ته هم او ګوره . دافغانستان ننني حالات ته ګوره ، که په هر قوم یا دبری او بهرنی زرګو نه

که په هره جامه کښې جنګیږی، یوهم د استقلال، دین، خاورې دسالمیت او د ملت د وحدت خلاف خبره نشی کولے او نړکوی ټول او هریو چه زړه کښې یې هرڅه وی او باهرنې لاس یې غوړ کښې هر بین چه غرږوی ددے « ملی روحیې » خلاف څه وئیلے نشی. ګڼی اعتبار یې ختمیږی او قوت یې تس نس کیږی.

بلکه زما په عقیده ضرورتاً یا مصلحتاً په ظاهره هرڅه چه دی او هرڅه چه کوی په وینه او مینه کښې یې ملی، دینی استقلال او روحیه ژوندئ ده - او چه دا ظاهری، سطحی مؤقتی او د مجبورئ پرده پورته شی، "ملی روحیه" به هرخوا غالبه وي.

هغه چه داوادیدل، نو ځکه چه یو څو ځلې کښې هم دغې روحیې غږونې اوکړے او دا سے ګویا شو: « هو - زه دااوس د مزار شریف، کابل، جبل السراج، کندهار، شبرغان، هرات او کندوز د سفر نه را واپس شوے یم. د ټولو پلو او فریقونو د مشرانو، ملاتړو او خلکو سره مې خبرے کړی. هرځاے مې د ینی عالمانو، سیاسی پوهانو، قبائلی معتبرانو، دکاندارانو او عام اولس سره ترپوره حده مجلس کړے دے. د تنظیمونو ( جهادی په نوم ) مشرانو مې هم پو ښتلی دی، سرکش کماندانانو مې هم لیدلی دی وغیره وغیره. حقیقت دادے

چه د هر یو د خبرو نه دغه بوئیږ راتلو، بلکه اکثر یکښے د وضع نه تنګ، د نفاق نه بیزار او د رور وژنے نه نالان وو، او د صلح او امن دود یے غوښتو. هرچانه دیو فریق یا بل یه لاس حل نه شکاریدو، د جرګے دعاګانے یے کولے او داسے کسان م هم اولیدل چه هغوی د باهرنی لاسونو، ادارو او قوتونو سره ډیر نزدے یا تے شوی وو او ډیر اعتبار یے لرلو، ولے اوس هغوی د باهرنی لاس د بل هر افغان نه زیات مخالف وو. او یو ډیر مشهور کماندر خو راته اووئیل روره اخبار کښے اولیکه چه که افغانان د بل لاسو کښے استعمالیدل خرڅیدل او ګنهیدلو ته تیار وی نو اعتبار یے هم شته او هر قسم کومک شته اوکه نه خپل استقلال، خاوره او ملت غواړی، نو بیا هم هغه باهرنی چلګری ورته خائن وائی، بلکه یو وخت یے مونږ سره بالکونه وئیل، لمونځونه کول او دوژے نیو لے او اوس چه مونږ د اسلام نوم اخلو، نو یه دوی بد لګی.""

دے سرې ماته اووئیل چه ټولو ډلو، فریقو نو او کماندرانو سره د هرے سیمے، هر نژاد، هرے ژبے او عقیدے کسان شته او رښتیا چه هره ډله یل څه نه ده افغانی ده. اوبله خبره داده چه د افغانستان د تیرو رژیمونو افسران

حاکمان او سیاسي کسان هم هر ننځ د له کبنه سره په شوق کارکوي. هیڅ فرق پکښې نه معلومیږي، ولې د دې څه معنې ده؟ آیا لکه چه ته وائې دغه شان افغانیت د دې روح دې که څه بل څه وجه ده؟"

ما د دې جواب ورکړو چه زه پخپله ضد نه کوم او نه بحث کوم، کیدې شي چه د دې ډیر عوامل وي، خو ماته بنیادي عامل د دې ټولو تجربې افغانیت ښکاري، خدای دې اوکړي چه دا روحیه کمزورې نشي. حال دا دې چه د دې دښمنانو ډیرې هڅې کیږي، خو شکر دې چه دهر افغان ستړګې غړیدلې دي، خدائې دې لې بیا پټې نه کړي."

زما د دې وینا نه پس هغه بابه پوښتنه دا اوکړه چه لږ ما د مداخلت په مفهوم پوه کړه، ځکه چه دروغې جوړې کوششونه د افغانستان د بیا ودانولو کومکونه او نظریاتي یا د عقیدې تعلقات یا د مستقبل د آبادۍ، ترقۍ او خوشحالۍ په شکل د نوي تمدن غوښتونکي او دزړو روایاتو او دماضي دا جتماعي ژوند ساتونکي به جدا جدا پروګرامونه لري او هر کله چه په دنیا او کومونو کښې د قدیم تهذیب و تمدن او د نوي ژوند ژواک په بنیاد د بیلې بیلې نظریې او عقیدې دي او د هغې اثر به په افغانستان ضرور کیږي او نن

دهغې مخه نشي نيولے کيدے، نو دا سے واقعي حالات کښې به د مدا خلت حدود څه وي؟ "

ماجواب ورکړو: " ډير سبه دِ او وئيل - بنيادي خبره دِ اوکړه. دافغانستان تاريخ، روايات او عمل ددے خبرے ګواه دے چه دافغاني ملت په دے لړکښې واضحه او پوخ عمل لري. (۱) د دوستۍ، ميلمستيا،سير و سياحت په طور په اجازت چه هرڅوک څۍ راځي . دهغوی په لاره هرافغان سر او سترګے فرش کوی، بلکه که د سر د شمن يئ د پناه د پاره يا ديوافغان په ضمانت يا دجرګے په اجازت را ځي، نو دهغه سره د ورور هسے تعلقات ساتی. (۲) مصالحت او روغه جوړه کول په تود جنګ کښې، ډزو کښې هم تيرېږه کيښول او د شلو مړو قاتل افغان سره روږولی جوړول دافغان روحيه او عنعنه (روايات) دی. او که څوک د صلح په نيت راځي دهغه قدر کوی او د هغه خبره رد کول (جولئ تشه لېږل) لوے پيغور دے. خو مصالحت او مدا خلت کښې فرق دے. د مصالحت کوونکی د فريقو نو د شخړو، پس منظر، عواملو، ډزو او د سرو مال د تاوانونو دجذباتو د هوډ، پت، دود دستور (رواج) د مشرانو کشرانو د رويو او ارادو نه سبه خبر وي. د فريقينو (فريقونو) د قبيلو د صلح د پاره د نرخ او رواج او د هر فريق د ملاتړو د هرڅه

نه بنه واقف وی. او د صلح (جرگے) دپاره یئے لارے معلومے کړے وی. د فریقینو او ملاتړو خوله یئے په پیټه یا په ښکاره بوئیں کړے وی او نبض یئے کتلے وی، چه د صلح دپاره راځی، نو میدان (صحن) یئے صفا کړے وی. یعنی اندازه یئے لګولے وی. او په خپله اندازه یئے د فریقینو د حق، رضا او جذباتو په نظر کښے نیولو سره ذهن جوړ کړے وی. د جرګے معتبران (ممبران یا غړی)، چه د صلح دپاره فریقینو ته ورځی، نو د هغه نه وړاندے هریو د شخړے په بنیا دونو او د صلح په لارو ځان ښه پوهه کړےوی او بیا پټول د غه د جرګے مشران خیالو کښے ناست وی او هر څه یئے سنجولی وی او د شخړے دعوالو، د شخړے د مرګ، ژوبلے، تاوانونو په هکله د نرخ او رواج په رڼا کښے یئے هر اړخ ښه تللے وی او خپل ذهنونه یئے په یوه متفقه فارمولا (د صلح لاره) ساز کړے وی. او د جرګے د هیڅ یو غړی د شخړے د هیڅ فریق یا ډلے سره د شخړے په کومک یا مخالفت کښے هیڅ پټ څرګند لاس ثابت نه وی یا کم نه کم د فریقینو یقین وی چه د دوی هیڅ فریق سره هیڅ لاس نشته. جرګه او د جرګے هر غړے به فریقینو او د شخړو قبیلو او کوانډو ته معلوم وی چه هریو ثقه ثابت دے. جرګه یئے بل غرض یا خپل ګټه تاوان نشته صرف صلح یئے مدعا ده. ماضی کښے یئے

جرګو کښې د هیڅ فریق په هیڅ وجه د مرستې او پرې جمبې کولو نه
لمن بې داغه ده او شهرت یې نیک دے . او ټوله جرګه د جرګې
په حیث په دغه صفتونو موصوف ده او د دے ثبوت او شهرت
مسلم دے، وغیره وغیره . ځوکه دغه شان کوشش کیږی هغه
د مصالحت او امن کوشش دے . داهر څوک چه کوی مداخلت
نه دے، او د دے کامیابی یقیني ده . او که داسې نه وی د دے
برعکس د صلح او امن په نوم چغې او منډې ترړنې وهونکي
د هریو ماضی داغی وی، د صلح او خیر په نوم یې د خپل غرض
دپاره شرته لمن وهلی وی او جوړ کورونه یې وران کړی وی
او نن هم دنیا ته لګه د لمر ښکاره وی چه د مصالحت په نوم جرګه
او د هغې غړی د هر فریق سره د پیسې، وسله، تخنیک، سړو
او سرپرستۍ په ډیر مضبوط کومک لړلی وی، بلکه منصوبې
او لارسه ورته جوړ وی . د خپل غرض او پروګرام دپاره د
شخړې د فریقونو، ډلو او ملاتړو ډ اډګیرنه، لمسه، زباني جمع
خرڅ او دعوې او وعدے کوی او شخړه تر هغې هواریدو ته
نه پریږدی چه د دوی خپل غرض پوره کیدو ته میدان په مطمئن
ډول د دوی لاس کښې نه وی او د دوی ډیر اعتباری فریق یا ډله
د دوی د خدمت د پاره د واک اختیار خاوند نه کیدے نه شی او دا
نیت اراده او عمل هر فریق، هرې ډلې او هر افغان ته معلوم وی

بلکه په سترګو یې وینی . اوهر یو په دې هم یقین وی چې
دداسې کسانو په پروګرام ملح او شی نو هیڅ فریق یا ډلې ترخیر
نشته ، بلکه هغوی ته به سترګې بدلې شی او نننی نازبین (محبوب)
به بیا دُشمن وی . نننی غازی به بیا خایُن شی او د صلح او
امن په نوم به "بندر بانټ" (د بیزو ثالثی او د پنیر د شاړ
ټکړې د دوه پیشو ګانو تر مینځ داسې ویشل ( تقسمول ) چه
نتیجه کښې ټول پنیر بیزو ( شادو ) اوخوړو او پیشو ګانې
اوږی پاتې شول او په تش میدان یو بل ته غړیدل ) وی .
داسې مصالحت ته د مداخلت حربه وئیلې شی .
(۳) پاتې شوه ستا وینا چه دافغانستان د آبادئ د پاره -
کومکونه ، نو هغه چه د افغانستان د خلکو د مستقلې ارادې ،
اختیار او رضا مطابق وی ، نو هغه د هر چا او هر لورې چه وی ، د
مداخلت او لاسوهنې نه پاک وی ، نو افغانانو پرون هم قبول کړی
دی ، نن یې هم قبلوی او سبا ته هم قبلولو ته تیار دی . تاسو
په یاد شی چه د ثور د واقعې نه مخکښې موده کښې د امریکې صدر
کابل ته راتلو ، نو په موټر کښې به داسې سړک راغلو چه نیم
امریکې جوړ کړې وه او نیم سوویت یونین . د غه شان چین ، جاپان
یورپ هند او ایران ټولو پروژې ( پراجیکټونه ) چلولې .
د افغانانو د جرګې او ارادې افغانستان کښې د هیچا حق نه و

چه بل ته کوته او نيسي . او د هغو لے د نيا سيلانيان، د کلتور استازي
سنکاريان او د تاريخ او تمدن محققان به په ډيرکي تعداد کښې
د دنيا د کوټ کوټ نه د سياسي تفريق، عقيدے د اختلاف
او د څه بل بيلتون او امتياز بغير افغانستان ته راسے به خوشحالئ
او آزادئ تلل راتلل لکه د خپل رور کور ته څوک ځي راځي .
افغانستان هيڅوک په کوږ نظر کتلي او نه تر څنګه ژبه څه وئيلي نه دي،
بلکه هر څوک يئے ميلمه ګڼلے دے او هر چا (هر افغان) يئے
قدرت او عزت کړے دے .
البته نن دا په يقين سره وئيلے شو چه افغانستان د خپلے ماى
رو حيے مطابق د ميلمستيا او انساني رور ولئ په جذبه دروازے
پرانستي او زړونه د مينے ډک نيولي وو، خو افسوس چه يا
زمونږ د سياست غلطي وه يا د هغوئ ناموش مداخلت و
د کوم مک په موټي کښے د قبضے (مداخلت) زهر لولونتي وو .
مونږ يئے د " دوستئ " په جامه ټکرے ټکرے کړو، نو
اوس که مونږ ويرېږو او " مار خوړلے پړى نه ويرېږى " -
مصداق اول دا کښو چه پړے نه دے مار دے، نو بيا ځايه
ويره نه ده . بيا پړے سنه لټوو چه " زهر " خو کښې نشته
دا زمونږ تجربه ده . افسوس چه تر اوسه هر " پړے " اصل کښې
" مار " شي . خداے دِ اوکړي چه چلکري ختم شي .

او د بیروني کومک خبره داسې ده چې نن خوا افغانستان بیروني لاسونو او عزایمو تباه کړې دې او س د دې ملک او ملت د آبادۍ ټول مسؤولیت د بیروني طاقتونو په غاړه دی. تاریخ ته او افغان ملت ته به د هغوی مخ هله سپین شي چې ټول په جمع او هر یو طاقت په ځانګړې ډول دا ملک په ټولو معنو د آبادۍ، ودانۍ، ترقۍ او خوشحالۍ په لور روانولو مسؤولیت دا افغانانو په خو ښه سرته ورسوي. دا به مداخلت نه وي.

او ترڅو چې د زوړ ژوند او نوي دُنیا د تمدن خبره ده، د مستقبل په نوې نړۍ کښې د عقیدوا و نظریو د رقابتونو خبره ده او په دې اساس د جنګونو او خونریزۍ خبره ده، نو دا نه یواځې دا افغانستان خبره ده، نه یواځې دا افغانستان د ننۍ شخړې سبا نۍ صلح او امن سره اړه لري. دا د ننۍ دُنیا عامه خبره ده. په ټوله دنیا کښې د نوي تمدن (نوي ژوند) او زوړ تمدن معامله ده. او دا چې د کله نه معلوم انساني تاریخ کښې شي، دا بدلونونه راغلي دي، راځي او راځي به. په عالمي انساني تاریخ او معاشره کښې دا ارتقا ابدي قانون جاري دی. زوړ د نوي د پاره ځای پریږدي خو زوړ مدافعت کوي او نوي پرې راخیږ وي، نو دا د زوړ او نوي جنګ به هم وي او قومونه او اولسونه به یکښې د ژوند رفتار هم کوي،

افغانستان او افغان ملت د دې تاریخي او اجتماعي رفتار او بدلون
مخالفت، مخنیوی یا انکار نشي کولی. د نړۍ کوم عالمان
چه د ننني زمانې په دې بدلون تحقیق، غور او بحث کوي،
نو هغوی وائي چه د وسلې او مورچې د جنګ وخت تېر شو.
(په تېرېدو دی) اوس به د اقتصاد په ډګر د تخنیک (تکنیک)
په زور د اطلاعاتو (میډیا - ټي وي، ریډیو - اخبار) په سحر
(جادو) په نړۍ د سوړېدو او خوړېدو مقابله وي، د دې
دپاره د امن فضاء لازمه ده او بنیادي انساني حقوق به منل
وي، دا سوال چه آیا د دې عالمانو دا خبره د انساني فکر
د رسائۍ او د قدرت د نظام د مطالعې واقعي نتیجه ده، که د
لویو طاقتونو (ملکونو او قومونو) د نوي ارادو، عزائمو
او منصوبو دپاره نوې پالیسي او پروپګنډه ده. خو دلته
په دې بحث نه دی. دلته صرف دا وایو: چه نن په نړۍ
کښې د دې نوي بدلون دور دوره (چرچا) ده. مونږ د
افغانستان دپاره په دې کښې هغه حق او مقام غواړو چه
دا ننۍ انساني نړۍ، د دې عالمان او مالکان یې بل انسان ته
قائل دي او بس. نو مونږ نه د بل حق وهل غواړو او نه
خپل حق په بل چا وهل منو. د دې بنیادي اصولو مطابق
هر څه منو، خو په زور، چل یا په وسیله نه، بلکه په خپله اراده،

رضا، خوښه او مستقله روحيه. او غواړو چه د نړۍ د ارتقائي (ترقۍ) نوي تمدن د هر قوم نه هر ميدان کښې پوره استفاده اوکړو. او د دې د پاره خپلو ټولو گوانډيانو (همسايه) سره او د عالمي انساني ورورولئ سره او د دې رورولۍ د هر غړي سره خوږ تعلق، د اخلاص ورکړه راکړه او د ضرورت او احتياج په وخت کښې بې غرضه کومک ديو بل سره ترقي او خوشحالئ په مينه او تفاهم شريکول غواړو. ما چه تر دې خبره اوکړه نو ډيلي ميټ صيب زما د خولې نه خبره واخسته او ويئ وئيل: "بس د سوال ځواب واضح شو. خو دا ټولې لوئې خبرې دي، لرې خبرې دي. او تا صحيح او وئيل چه دا وينا هم اسانه خبره نه ده. چه د دنيا د عمرانياتو، سائنس تخنيک، سياست او ډورو فاسفو عالمان چه څۀ وائي دا اصل کښې څه دي؟ البته دا راته اووايه چه نن سبا خو دافغانستان د شخړې د هوار يدو د پاره ډير زور شور سکاري او ماته اسلام آباد کښې او وئيلې شول چه تو د تم کښې درنها خبره سکاره شوې ده، د صلح او امن خبرې کاميابئ ته نزدې دي؟"

ما ورته او وئيل: "صيبه! خدائې دې اوکړي چه درنها خبره رښتيا روښانه فضاء شي او د صلح او امن خبره د افغانستان په خير سرته اورسيږي. په دې هکله موږ هيڅ

تعصب، تنګ نظری او رقابت نه لرو. او باید چه هیڅوک په دې کښې خنډ نشی، بلکه زمونږ دُعا او کوشش دے چه د هرځا په لاس چه کیږی. خدائے پاک دې داسے خبرو اترو کښې خیر او برکت وا چوی. مونږ به هغه لاسونه دهرځا چه وی شل ځله ښکل کړو چا چه افغانستان کښې امن راوستو. ولے مونږ دا افغانستان مسئله د ډپلومیسئ مسئله نه ګڼو. د ایوه ملی سیاسی مسئله ده او ددے جړے په افغان ملی روحیه کښې دی. ترڅو چه دغه روحیه مطمئن شوے نه ده په سرسري (سطحی او سفارتی) خبرو دا مسئله نشی هواریدے. هر افغان به د مصلحت یا ضرورت په تقاضا سر اوخوځوی او دا تاثر به ورکړی چه هغه خبره منی، خو د زړه ستن ئے به د ملی فیصلے نه په بل ځه هیڅکله نه شی تینګیدے او د غه وجه ده چه هره مصلحت کوونکے " چه دهرچا له خوا او هر لوری را شی، افغانان فریقونه ورسره خبرے اوکړی او هغه (مصالحت کوونکے) اعلان اوکړی چه خبره فیصلے ته نزدے ده. خو لا د " مصالحت کوونکی " ژبه په اعلان ګرمه (توده) وی، چه دوئ کښې افغانیت را بیدار کړی شی او د افغان روحیے مطابق د چل ول دخبرونه په څه نکته ځان خلاص کړی. دے " مصالحت کوونکے " صلح صاحب کوی، اخوا عملاً جنګ جنګ چړې شی. آیا ددے حقیقت نه څوک

ستړي کې پېښولې شي. چې څو څو واره دغه شان بيا بيا خوره شوې چې دغه ده مصالحت اوشو. قسمونه، سوګندونه او هر څه اوشول، خو نتيجه يې صفر راوخته."

ډپلوميټ چه دا واورېدلې نو وې وئيل: "ستا څه خيال دې، چې دا به لوظي نه ده. د وعدې خلاف عمل نه دې فريب نه دې"

مادده د خوله نه خبره واخسته "اوزه ورته او يا نور خلک چه ورته هر څه وايئ او زه سم به لوظي د افغانيت خلاف ګڼم. ولې تا يه دې خبره سوچ کړې دې چه هيڅ افغان، ولو که هغه ډيره وسله، پيسه، نشه يا خارجي ملاتړ لري، د افغان ملت د اجتماعي روحيې (ملي جرګې) خلاف چه هر چا سره هر څنګه هر ځائې هر څه فيصله کوي. هغه به دې پوهېږي چه د هغه خپله وينه او افغانستان (ملت) يې نشي منلې. نو داسې فيصلې چه شوې دي په هغې "مصالحت کوونکو" ځانونه دوکه ورکړې ده. زه د هغه کسانو چه وعدې کوي او ماتوي يې سر نه وينځم. د دې جواب او صفائي به هغوي کوي. زه فقط دا وئيل غواړم. دافغان ملت به سر د هغوي د تاريخ، عنعنې، ارادې، خاورې د سالميت او ديني او سياسي استقلال خلاف چه څوک د هر چا سره فيصلې کوي، هغوي ځان ته دوکه ورکوي. فيصله

نقط او فقط ملی جرګه کولی شی او دهغې نرخ او معیار، هئیت او اختیار هرڅه هرسوچه افغان ته ښه معلوم دی. دهغې خلاف چه هرڅوک فیصلې کوی هغه فیصله نه ده، دچل ول معامله ده."

ډیپلومیټ اوونیل: «زه هم افغان یم په دې پوهیږم، خو ته څه وائې چه ننني حالاتوکښې «ملی جرګه» یا «لویه جرګه» مشکلات نه لری؟ او ننني حالاتو کښې چه ډیر بدل شوی دی او کړکیچن شوی، د «ملی لویې جرګې» دا ئین بدل کړان نه دی؟»

ما جواب ورکړو: «روره! پښتانه وائی که غر لوئې دې په سر یې لاره ده» که افغانان جاپر ښښول، نو لاره به جوړه کړی او کرانه به اسانه کړی.»

مونږ دا خبرې کولې چه ډیپلومیټ یا څو چه څه غوښتل هغه یې واوریدل، یا یې ذهن کښې چه څه جوړ کړی و وهغه کړو ته شولې یا د ډیر وخت مجلس نه تنګ شو یا خوب واخستو نو ماته یې اوونیل: «ماستا دخبرو نه مطلب واخستو، زه هم نور هم مجلس غواړی، خوخوب واخستم، نور سم مجلس نشم کولی، معافی غواړم، زه به ستانه یا څېرم، خپل سیټ ته به لاړ شم او په خپل سیټ به یوڅو نور سوالونه او لیکم، هغه به تاته درکړم، ته دهغې جواب ماته راولیږه، زه به ډیر مشکور او

خوشحاله شم.»

ما ددې جواب کښې هغه ته اوویل « ډېره ښه ده، ته راته لیکلی سوالونه راکړه، زه به ډېر په خوشحالۍ او ذمه وارۍ د هغې جوابونه درته اولیکم. او ددې سره هغه زمانه یاخیدو، ما ورته اوویل : نه برډجوهانسبرګ (جنوبي افریقا) د هوائي ډګر ته رسیدلو پورې خپله رائې اولیکم او در به یې کړم او هغه به د افغانستان د ننني شخړې د هواروالو او آینده افغانستان د صلح، امن او تعمیر دپاره زموږ د مطالعې، تجربې او ارمانونو بنیاد وی. د پلومیټ داخبره خوښه کړه او خپل سیټ ته لاړو او ما تر دوه پنځه پورې د جوهانسبرګ هوائي ډګر ته رسیدلو نه وړاندې پوره رایه اولیکله او هغه ته م ورکړه او هغه ما ته خپل لیکلی سوالونه را کړل.

ما ډپلومیټ ته اوویل : په دې هکله زه یو کتاب زر لیکل غواړم چه پکښې به په وضاحت سره د افغان روحیې، د افغانستان د مسئلې د حل او د افغانستان د مستقبل د جوړښت،

د افغانستان د سیمې او نړۍ سره د ښو روابطو وغیره په هکله بحث اوکړم او خپله رائې په څرګنده کړم، هغه به تاته درلولیږم

خو یاد لره چه :

د افغانستان مسئله د افغانانو د ملی روحیې خلاف هیڅکله هیڅوک نشی هوارولے.

# د پښتو او ننګ په تکل

نن ما ته حجرے نه د خوشحال بابا د مزار محافظ ګل باچا راغے
ساه نیولے او پریشان غوندے و۔ ما ته د اخبارونو نمائنده ګان
ناست وو، ما سره یئے مصاحبه کوله. چه زما دے ته پام شو، نو کے
به نور کله ډیر مطمئن ناست و۔ مجلس به یئے آوریدو او چه
زه به اوزګار (فارغ) شوم نو دده نه به م تپوس اوکړو چه وایه! استا
څه حال دے؟ د بابا د مزار څه حال دے؟ چه هلته میلمانه راځی
د هغوی څه حال دے؟ او په دے تپوس به دے لګیا شو د مزار
بدحالی، د هلته مهمان خانے بے غوری، د لرے او نزدے ځایونو
میلمانه چه د مزار سلام ته راځی د هغوی د مزار د حالت حفاظت
او ساتنے پالنے په غفلت زمونږ نه خفګان، ګیلے، غصے، لعنت،
ملامت او مایوسی، او د ده خپل تکلیفونه ضرورتونه او د مزار
د محافظ په حیث ذمه دارئ او د هغے نه زمونږ پیتے سترګے
او ژاړی څه ساعت کړئ ناست وی او بیا روان شی لاړ شی.

ولے نن دکتې په څنډه، ناست وو ماته یې نیغ نیغ کتل لکه څه تکلیف ورته پیښ وی او ماته څه ویل غواړی. زه چه په هغه پوه شوم نو تپوس م ترے اوکړو: "ګلباچا نن څنګه راغلے یې؟" هغه په دردناکه لهجه جواب راکړو: " نن دریمه ورځ ده، مزار ته یو" کابلے " راغلے دے او راتلو سره د مزار دُکانچې ته ختلے دے، هلته یې اول د دروازے جنګله په زور، زور رچکولے ده، بیا یې تالے (قفل) با ندے زور ازمائیلے دے او په چغو چغو لګیا دے وائی چه خوشحال بابا پښتو جوړته ده، اوس ستا او صبا به وی که نه پښتو ثله وه ـ نشته او نه به وی؟ که وه نو څه شوه؟ که نه و نو تاسو بې اوږ دے اوږ دے سندرے ولے وئیلی دی؟

ګلباچا دا مطلب په ګډه وده ژبه بیانولو او بیا یې اوویل چه"کابلے " په جنګله رچکولو او تاله (قفل) څنډلو او په چغه چغه رالړزولو باندے ستړے شو نو هلته پریوتو او چه هغه پریوتے دے نو هغه شان پروت دے، نه څه خوری نه څه څښکی، ډیر ضعیف شو او اوس پرےګرمه تبه هم راغلی ده. زه ورته په منتونو زارو ستړےشوم، خو هغه نه د ځایه پاڅی. نه څه غواړی، نه څه خوری، نه څښکی

نه په باران دے نه په شیلئ . چه زه ورسره ډیره خواري
اوکړم نو سترګے راپورته کړې او ماته او وائي " بابا ! ما مه
تنګوه - ما پریږده ، څه خپل کار کوه ، ته خپل کار کوه او
زه به خپل کار کوم " . نن سحر چه ورغلم نو دلوږے
نه ډیر کمزورے شوے او دتبے نه ډیر تنګ و ما ورته
ډیر منت وکړو چه څه اوخوره او څښنکه - او د اکټر د ته
راولم ، ګنی نو خدا ئے مکړه مرے . نو ددے جواب کښے
هغه او وئیل " بابا ! زه د بے پښتو ژوند او بےننګه زیست
نه بیزار ، دپښتو او ننګ په لټون کښے راوتلے یم ، دبدنامۍ
او غافل ژوند نه م دا سے مرګ ښه دے . ژوندی به پو هیږی
خو دا سے مرض پرے راغلے دے چه نه پوهیږی . دمیرویس
او احمدشاه او باچا خان دمزارونو نه خو یئے اوشړلم او د
شیرشاه قبر ته به او نه رسم ، نو بس دلته مړ او ښخ به یم .
که بے پښتو او بےننګه ماحول کښے دمحلونو او باغونو زندګی
هم وی دهغے نه دپښتو او ننګ په ارمان دهیواد دخړے
خاورے لاندے مړ پروت او خاورے به یم " .
بیا لیے مر اولګولو ، خو چه ترے راروان شوم ، نو آواز یے
راکړو " بوړه امرم - مړ ډ شم ، خو که ته ما سره به کوے
نو دا یو آخری ارمان م پوره کړه چه ما دلته ددے ګنبت

سرته یا پښتو ته ښخ کړه او د بې پښتو او بې ننګه لاسونو په سیمنټ چونه یا خښته رم قبر مه جوړوه . د خوشحال بابا دهدیرے په مړه خړه خاوره خو د پښتو د دے پلار د ننګ اوتورے په نامه یاده زمکه باندے رم که ځلے جوړ وے جوړے کړه او نور یرے هیڅ مه لیکه مګر صرف دا چه "د پښتو او ننګ په تکل مړ"

ما چه د کل باچا په ماته کوډه ژبه دا مطلب واوریدٔ نو پوه شوم چه دا "کابلے" څوک دسوچه وینے، سوچه باشعوره، ننګیالے او رښتیا پښتون دے او زر یا خپلد م روان شوم ۔ او مزار ته اورسیدم ۔ رښتیا چه هلته هم هغه شان پروت و څنګه چه کل باچا وسُلی وو .

زه د هغه سره کښیناستم ۔ په سر او تندی رم ورته لاس کیښو او غګ ( رغ ) رم پرے اوکړو "وروره!" هغه ستر کے او غړولے او وے وئیل "نه راغلے" ما ووئیل "هو! زه اوس خبر شوم، نو دا دے راغلم" هغه ووئیل "ولے راغلے؟" ما ووئیل "راغلم چه تا اووینم ۔ ستا د حال نه خبر شم او ستا غور اوکړم" هغه د سر پورته کولو کوښښ شروع کړو، نو کل باچا ورلاندے شو . د هغه سر او سینه یے خپلے جولئ کښے کیښول او هغه په ډیر ضعیف او تب ژن

وجود ماته خبروته سم شو.

د خبرو د پاره جوړ نه و، خو داسې معلومیده چه ماته خبرې کول غواړی. د گل باچا غېږ کښې یې ماته څو ځله په زیر زیر اوکتل، داسې چه یو نظر به یې اوکتل نو بیا به یې سترگې پټې کړې. یوه لحظه هغه په ژبه خاموش او په سترگو او ذهن گویا، د ځان سره په څه سوچ کښې ډوب یا ضعف کښې غرق پاتې شو، بیا یې اوو ئیل «زما غور؟ څه غور؟ څنگه غور؟ په دې بې پښتو بې ننگه او بې غوره محیط کښې غور؟» بیا یې سترگې بندې کړې او ما د هغه په تهنده لاس کیښو، ورته م د مینې او اخلاص په ژبه اوو ئیل: «روره! راشه چه اول تا د مرگ د کومی نه ژوندې راوباسو، چه ته د خبرو او سنجش شې، نو بیا به د پښتو او ننگ په خبرو غور کوو.»

هغه سترگې راپورته کړې او ووې وئیل «که پښتو او ننگ شته نو خدای دې یې لری نه مونږ ټول به مرو، که زه مړ یم هم به وی او څوک به پرې غور او سنجش اوکړي او که پښتو او ننگ نه وي نو ما فیصله کړې ده چه زه په داسې فضا کښې ژوند نه کوم، نو بیا ماته په دواړه صورته کښې د ژوند ضرورت نشته»

هغه بیا سترگې پټې کړې او د گل باچا غېږ کښې یې اخر بدل

کړو او ماورته وئیل شروع کړل: «ګوره روره! دا سې ښځوان يې، دومره پوه يې او د پښتو او ننګ نه ډک يې، ولې حيران يم چه ستا غوندې پوه پښتون دومره مأيوس ولې شي. تا د خوشحال بابا په خوله دا نصيحت نه دې اوريدلي چه:

که آسمان دې د زمرې په خوله کښې ورکړي

دزمرې په خوله کښې مه پرېږده همت

یا

که يې درست دمېتو نور را ته ښکاره کړ

بيا فلک سره کشتي په خپل دستور کړم

یا دا چه:

مست هاتيان خونې زمرې په زنځير کېږي

ګويا دا چه ځان فلک وته ترېور کړم

هغه چه دا واوريدل، نو به پټو سترګو ډاو ريدو راواوريدو لکه چه زما په دې وينا او په خپل تګل غور کوي او بيا يې سترګې پرانستې، ما ته يې ټينګ ټينګ اوکتل او وې وئيل «مأيوس نه يم، غافل افغان او تا او ما د ژوند د ترخو حقيقتو نو نه سبق وا نخستو، زه د دوی ننني ژوند نه بېزار يم چه دوی د صبائي (مستقبل) ژوند د پاره د خپل ملي ژوند په ډکر نه روانيږي، نو زه دوی سره

دا سے ژوند نور نه شم تیرولے - پرون بی با بامکان پوښتم، خوهغوئ هم جوړ مرور دی، جواب نه راکوي، نوماته بله لاره پاتے نه ده. اوس زه تکل دے چه د ے خاورے ته ورځم که د ے کښے رښتیا پښتو او ننګ وی، نو زه به هم په هغه رنګ کښے ورسره خاورے شم - دلته به زما خلے جوړ کړئ او زما ارمان او تکل به پرے اولیکئ. زه به هسے هم مرم خو د اسے به دلته د خپل ارمان او تکل نخښه پریږدم. که څوک دا صیلے او سوچه ویښے خاوند د پښتو د پلار مزار ته په دے مینه او جذبه راشی چه دا د ننګ د تورے د ننګیال خلے دے، نو خوا کښے به یے یو دا سے خلے هم اوویني چه هغه دی پښتو او بے ننګئ د فضا د ژوند نه د ارمان او تکل په لاره د مرګ غیږ ته تښتیدلے یو پښتون افغان خلے وی. کیدے شی چه د ننګ دا شعار وواو بل د بے ننګئ د ژړا دا دوه بیل بیل خلی ورته ذهن ته تکان ورکړی، وینه کښے یۓ سوُخی پیدا کړی، د خپل ځان او جهان غور ته متوجه شی او د خپل نن او صبا فکر اوکړی. او که دا سے نه وی او نه کیږی او نور هیڅ او نه شی نو دومره خو به وی چه زما خپل روح خو به ازام وی، که هغه نه شو کیدے، نو دا خو اوشول.

مرګ زما په پوهه سنه تر دا ژوندون دے

دعزت سره چه نه وی زیست د روزګار

دده وینا سره هغه ستړے شو ـ سرېږے دګل باچا غیږ ے نه اوغورځولو او سترګے یې پټے کړے ـ او زه خاموش پاتے شوم.
دده په دے وینا فکرونه زغلولم ، دده په دے مرګونی حال او ژوندۍ خبرو سوچ کښے ډوب شوم . وایم چه رښتیا مأیوس نه دے ـ خو د زړه خوله د بابا د همت چخے او دوخت فضا کښے د بے ننګۍ دلاسه دوجاله دے . په دے کښے هغه بیا ماته اوکتل او وے وئیل " د آسمان سره جنګ آسان دے خو د افغان د بے اتفاقۍ علاج ګران دے ، او بیا یې سترګے پټے کړے او په اړخ واوړیدو . دده نه پس زه لاجوا به شوم اوګل باچا ته مِ اووئیل : " بس دے نور یې نه تنګوو ، دا د بحثونو وخت نه دے ، ځکه چه ځو او س دده دړو سند تا بیا اوکړو . هغه چه دا واریدل نو په غصه غوندے کښے یې اووئیل " چه نه پوهیږے نو خدائے دِ پوهه کړه او که بیا هم نه پوهیږے نو دغه شان سِه یې ، په خوږو خبرو وخت ته دِکه ورکوه ، ترا خه حقیقتونه شاته غورزوه . سبه پوهیږه او مه پوهیږه ، د دے پروا مه کوه چه وړاندے ځے که روستو ځے ، خو بس په پټو سترګو مست مست روان اوسه . " هله به خبر شے چه تارو جیبے له و شے " هرڅه چه کوے کوه ځکه

چه څه کوے پکار دی هغه نښے کولے نوکه د " مصلحت " او " سیاست "

نه ویریږي نه نو، زه مرم، او تاسو ړ دلته د دې کنبت سره جخت سرته یا پښتو ته زما د وصیت مطابق خاوروته او سپارئ او صرف یوه کتیبه را باندې او لیکئ «د پښتو ننګ په ننګل کښې مړ»

ما چه د دغه دا وینا واوریده، نو پوه شوم چه سړے ډیر بیزار دے او د اسې تراخه رښتیا وا یئ چه مونږ یئ نه وئیلے شو او نه اوریدلے شو او دے ځکه وئیلے شي چه د دے ننني ژوند د ګزارے نه وروته د مرګ په لاره تګ غوره ښکاري او دا یئ نیصله کړے ده چه که د پروني پښتون د «بے ننګئ» د لاسه خوشحال د پښتو نه مرور شوے، نو په «میر کلان» کښې یئ «کوسنه پیو لی وه او لویه یئ پریښې وه» او «کمه یئ نیولے وه» او داسې یئ وئیلی وو:

دبے ننګه پښتنو له غمــــــه مــــا
لویه پر یښوه و نیو له کمه ما

نو دا افغان پښتون د ننني پښتون نه مایوس شوے دے د خوشحال بابا د مزار کوښے ته یئ ځان رارسولے دے. د بے ننګی (بے اتفاقئ) ژوند پریږې دی، د مرګ سفر کول غواړی په دے ننګل چه که د ژوند چغو دا ملت د غفلت او تباهئ د خوب نه رابیدار نه کړو، نو کیدے شي چه «د مرګ سلګئ» خــــه

اثر پیدا کړی. زه دده کار ته سبه نه شم وئیلے، خو ډیرے خبرے یے ښیے دی. زه دے فکر کښے ډوب د مزار د احاطے نه راووتلم چه هغه آواز او کړو «ته د» ژوند مړو» ته د غیرت چغے وهه او دخیر په ډیرئ ناست تماشے کوه. او زه به د «مړو ژوندو» سترګو ته د قبر د خازے نه که م نصیب شوه، د «پښتو او ننګ» پیغور ورکوم دمرګ په ستونی کښے پروت بړاستظار کوم. و ئیلی شی چه پښتون هر څه هضمولے شی خو پیغور نه شی زغملے، که دا لا تر اوسه رښتیا دی خدائے دِ یےُ رښتیا لری، نو ټکان به او خوری او د سورو د لاسونو دخوږ و زهرو نه به یےُ سترګے خپلو ترخو زخمونو ته راوګرځی او چه په دُښمکښے دا بدلون راشی، نو بیا به "ملی ژوند" باندے قربان شوی، در په در شوی، دازمونږ اولسونه دمرګ د سپیرے لارے په ځانیُ د ژوند بختورے لارے باندے روان شی. او په دے تکل او ارمان کښے د مړو هیوادوالو خلکو او دهغو د مستړانو شیرشاه، روښان، خوشحال، میرویس، احمد شاه او باچا خان د ژوند دوام خپل مقام ته مخامخ شی. دمرګ په ډګر د ژوند ګټل تاوان نه دے.

زوچه ګاډی ته سوریدم نو دے کښے زمونږ یو ملګرے راغلو چه بورګرم ورسره اوکړل، نو هغه اووئیل «نن په لوے سرک

تیریدم ،خو چه د خوشحال بابا د مزار بورته ( لوحه ) م اولیدو،
نو دے زړه راته اووئیل راشه د مخکښې نګ نه وړاندے د بابا
د مزار سلام اوکړه .» دهغه ملګری د دے وینا نه پس ورته
ما د دے سړی خبره اوکړه او د ده د پښتو او ننګ فلسفه او
د ده د مرګ ننګل م ورته بیان کړو ، د هغه ګلابی څهره تکه
سره شوه ، سترګے یئے عقابی شوے او د ترخ نه یئے د شیرشاه
دکتاب مسوده راواخسته او ډیر په جوش او جذبه یئے ماته
اووئیل : « زه د شیرشاه په ژوند ، کارنامو ، ملی فلسفه ، سیاسی
تدبر ، انتظامی حکمت عملی ، د قامی مشرئ او عسکری قومانډئ
په مثالی کردار او د هغه په لوړ فکر او پښتنی خصلت دا کتاب
لیکم .» دکتاب مسودے ته یئے څیره ورکړه ،او بیا ګویا شو
«کوم دے دا سړے ، بیخی رښتیا وائی ، دا سړے سړے نه
دے د عبرت تازیانه ده ، رښتیا وائی رښتیا . په ننئ فضا کښې
چه سړے دے پښتنو ته ګوری ، نو حیرانیږی چه دا په
پښتنو څه چل وشو . او کله کله خو فکر په دا سے لوری هم منډه
او وهی چه آیا دا پښتانه دا ازله دا سے وو که نن بدل شول
لکه خوشحال بابا چه وئیلی دی :

د شیر شاه او د بهلول خبرے آورم
چه په هند کښې پښتانه وو پاچاهان

یا هغه پښتانه نور وو یا ښا نور شول
یا د خدایې اوشو دا هسې شان فرمان

د دې وینا سره هغه جلت جلت د مزار خوا ته روان شو او مونږ کلی ته راروان شو. ما د ځان سره اوویل «ګل د ګل د ګل دې چې یو پوره کوم تر لاندې بل دې». هلته پروت د عبرت تازیانه او دا بل د پښتو د ننګ پروانه. خو د مسافر د مرګ د تکل د لارې نه د ملګری د شیر شاه په پښتني کردار د کتاب لیکلو لاره غوره ده. ما چې شاته اوکتل نوز مسا ملګرې هغه سړی ته رسیدلے و او ورته ناست و. دوئ م په دې فکرونو کښې چې د دې سړی سره څه اوکړم، پریښودل اوګل با چا ته م اوویل دا سړے هیڅ وخت یوازې مه پرېږده زه هم خو دده څه غم کوم.

چې تر کلی کوره راتلم نو دوه خبرې م په مغزو کښې تاؤ راتاؤ کیدے. یوه د مسافر سړی د مرګونی حالت خبره بله زما د ملګري په هغې درایې خبره. ځان سره م دا اوویل او چې خپلې حجرې ته ننوتم نو ذهن کښې دا فیصله شوې وه چې دا احساس ښه دے که پښتنو کښې دا سې زلمی پیدا شوی وی چې ترا خه حقیقتونه یې محسوس کړي وی، نو هم نیک فال دے، کاش چې حلقو نه تراخه شی او خورږ احساس پیدا کړی.

مابنام چه زماملګرے زلمے د بابا د مزار او د هغه سړی نه‌را واپس شو نو ماته راغے اووے وئیل » ما د هغه سړی سره یو څو تنه مجلس اوکړو ، سړے د شیرشاه ، خوشحال خان ، میرویس خان ، احمدشاه او باچا خان دوینے زلمے دے ، نن ورځ داسے ځوانان غنیمت دي ، خو دا غریب داسے لویے شوے دے چه څه یے لیدلی یا لوستی دی هغے یے په ذهن ډیر ژور مستقل اثرات کړی دی ، خو د تربیت فضاء یے نه وه نو دوجاله شوے دے ، سمه لاره یے نه ده پیدا کړے ، چه په ورانو ویجاړو لارو به تیاره وکښے روان شوے دے نو په هره لاره یے ټکره خوړلے ده او سر یے مات شوے دے او چه بیا نننۍ فضا کښے یے د هغے علاج کولو کوشش کړے دے ، نو د دوا په ځاے په زهر اوړیدلے دے . د افغانستان نننی حالت ښه زوروَلے دے او چه دلته راغلے دے ، په ډیر امید ، مینه او جذبه یے ځان را رسولے دے ، خو دلته هم ملی کوډ او ورور مات ګوډ ، ټس ټس ، په بیلو بیلو لارو د هوا او هوس په جنون ډوب د خود فریبه په نشه داسے مست روان و چه که ملت د پښنو لاندے دل کیږی او ورکیږی د هغے پرواه نشته ، پښتون شته ، خو د پښتو ننګ نشته ، نو دے مایوس شوے دے . «

ما د دے خپل ملګری ته او وئیل چه هغه ما سره مجلس اوکړو

ملګری اووئیل «هو، زما او د هغه دریاب تارونه په یو سُر وو، نو هغه په ضعیف حالت کښې هم ما سره خبرې او کړې . او تا سره یې ځکه خبرې نه کولې چې ته یې سه پېژندې، خو تا او نه پیژندو، دے په کابل کښې ستا کورته د ظاهر منطق سره ډیر راتلو او د منطق سره به یې د هغه مقابله کښې ستاد سیاست او موقف ترسه ډیره کوله او هرځاے هرچا سره به ستا په سرجنګیدو او ستاد "غیرت چغه" ورته پوره یاده وه، خو اوس ستا نه هم خفه دے، ولې اوس به دے هم خفه و، چې ته یې مزار نه خفه راولین لے. هغه اووئیل چې بدم او کړل. دزړه او ذهن دروازه م ورته وازه نکړه، ګنی نو د هغه غیرت به م راپارولے و، که نور یې څه نشو کولے، نو یو نظم خو به یې لیکلے و او لکه زما د قبر د خازے دالفاظو د روح غوندے به چالوستے و. پښتون به "غافل" یا ژوندے مړے وی، خو پښتو نه مری، نو یو ورځ به یې ژوندی اولسونو باندے اثر کړے و، زما قبر او د هغه کتاب او د تاریخی مشرانو کارنامو به نوے ژوند پیدا کړے وو او که داسے نه وی نو تاریخ ته ژوندی عمل که نه و، جذبات خو به پاتے شوی وو، نو که چا دد ے دور پښتون یې پته ګنړلے، نو بےاحساسه او بےجذبے خو به یې ورته نه وئیل، څه بل تعبیر به یې کولو.»

زما دا ملګرے هم د هغه نه ډیر متاثر و، او وئیل یې: «خبرې

خو هغه هم او ګڼي ، زه هم کوم ، ته هم کوې او بل یې کوي ، د هغې خپل ځای دی ، خو اوس د دنه سړي دژوندي ساتلو دپاره څه پکار دي . د ده مرګ نه د ده ژوند سنه دی ، دی په هر څه پوهیږي ، خو افسوس چه په دې نشي پوهیدی چه قبرونه ، خانګاه کتابونه او نظمونه تر هغې څه نشي کولی تر څو چه د هغوی د مرام روح غزونې او نه کړی او په هغې د عمل کولو خلک پیدا نشي ، بیدار نشي ، تیار نشي ، هغه لویه خبره ده هغه د خدای او کړي ، خو اوس د دې خدای د دې د مرګ دلاورې نه او اړوي ، نوزه به یې د ځان سره د پېړه کړم ، خدمت به یې کوم او د فکر او بیت تړیوه به یې بله ساتم . دا د وخت د پېړدو (غیره) د غرض د لوګو او د خپلو دپښتنګ د تیارونه جوړې ، په پیړ و پیړو تورې شوې وریځې او ددوی د تورتم علاج به دغه بخښی کوی . دا به نن هم د غسې دلوی پښتونخوا یا هیواد په خاوره کښې تس نس پراته وی او دغه شان احساسات په یکښې پیدا شي ، نو دا احساسات به دغه شان سپیره او بې اثره نه پاتې کیږي . دا به د بیت نیکه دُعا شي ، دهغه انغرې به ګرم کړی او د بابا ګانو خونه به آباده ودانه شي . البته که د پښتو ننګ چرې و ، نو هغه په دې لړزیدونکې نړۍ کښې دهرډول داخلي او خارجي خاورو او ګهو لاندې پټ یا ورک پاتې کیدې نشي . او که نه وو ، دا هر څه تشې خبرې ، قیصې ، شاعري

او بے ځا یه انتخار دے۔ د غرض نوره ښته، خوملی مینه
نشته او د احمد شاه بابا د اشعر هم تشه شاعری ده چه:

د ډهلی تخت هیرو مه چه را یاد کړم
زه د خپلے پښتونخوا د غرو سرونه

د خوشحال بابا د اشعار د هغه د جد و جهد د تجربے نچوړ
دے او رښتیا دے چه:

پښتانه په عقل پوهه څه ناکس دی
کُوته سپی د قصابانو د جوس دی
اوښ د باره سره کورته دے ور غلے
په ولجه د اوښ د غاړے د جرس دی

٭

او د باچاخان دا خبره هم سل په سل صحیح ده چه "پښتانه
هرڅه ته تیتګ دی، خو د وه پیسو ته نشی تیتګیدے"
او دا هم حقیقت دے چه:

هره چار د پښتانه تر مُغل ښه ده
اتفاق ورځنے نشته ډیر ارمان

٭

او پښتو منښتو او ننګ منګ هیڅ نه وی بس تشے خبرے وی
نو بیا یکار دی چه دا افغان پښتون هم پرے پوه دو چه مړ شي، خو

په قبر یې دا کتیبه ونه لیکو چه "د پښتو او ننګ په تکل مړ" ځکه چه پښتو او ننګ پاتې نه دې نو د تکل څه معنا او په هغې کښې د مرګ څه معنا، بیا خو دې ننګیالي او بې پښتو په لاره چه دا بتول کنډک (د خناور رمه) هسې هم د مرګ په لوری روان دې، نو دا سړی دې هم دغه شان لاړ شي. - تاریخ به خپله فیصله اوکړی"

ما چه د خپل زلمي دا وینا واوریده، نو سوال مې پرې اوکړو چه ستا څه خیال دې، پښتیا څه دی؟ هغه د خپل کتاب مسوده (په شیرشاه کتاب) ته لاس را خلاص کړو او وې وئیل "چه پښتو او ننګ وو، او وی به، خو د مشرانو بابا ګانو ژوند او عمل کښې او نن د هغوی په تاریخ کښې پټ پروت دې - زمونږ خاوره کښې شته، چه مشرانو بابا ګانو سره به پرې قوم ملا او تړله دي فاتحان به شول، ولې بیا به څه او شول؟ ولې به او شول؟ د غور او فکر معمه داده. نن صبا مونږ ته دا معمه حل کول پکار دي. د دې غوټې پرانستو د پاره ژوند وقف کول پکار دي، د مرګ لاره اختیارول نه دي پکار. او د دې سړی غوندې درد مند، حساس، ملي روحیه لرونکي او قوبانید ونکي ځوانان چه شته هغوی ته د مایوسۍ مرګ په ځای د امید د جد وجهد د ژوند ضرورت دې. ما هغه ډیر پوهه کړو، خو هغه دا سې مقام ته رسیدلې دې چه خدای دې پرې رحم اوکړي.

اوس یے په زور ژوندے ساتلو بله چاره نشته.»

دلته ځ مونږ دجېری هلک ماته یو خط راکړو، وئیل یے

دا اوس د حیات آباد نه چا مونږ ته کښے راوړو، وئیل یے زر دے

جواب په ټیلی فون راکړئ. چه ما خط پرانستو، نو د عربستان

نه زما لیونی کوهستانی برخوردار لیکلی و. خط نه و، د

خط په نوم مضمون وو او سرخط یے داوو:

" نه کلونه د غلامۍ په غلامۍ کښے

نه ساعت د آزادۍ که څنګند ن وی

۹

او په کښے په کلکو او تېنګو الفاظو د قوم د بےحسۍ او غفلت

د قهر او غصے او درد په ژبه، داسے کیفیت بیان شوے و لکه چه خوشحال

ته ورانده د پښتو د «مغل کورنۍ» د حاضرید و پیغام پروت دے.

دے د میر کلان دغو نه مخامخ په غور زنګ روان ابا سین ته کوری

د غیرت و ینه یے په ماتو ونزرو (هډوکو) کښے کله کرمه شی، کله

سړه شی او دے خپل جمدر د ترخ نه راوا خلی او کله یے بیاکېږدی

او خپل دا اشعار وایی:

| | |
|---|---|
| د بے ننګه پښتو د غمه مـــا | لویه پر پښتو ونیوله کمه ما |
| چه د ننګ کوهړې مات شـــو | دواړه سترګے په ژړا نه کړے یودم بے نمه ما |
| دهغوله خولے کړے خبرے اورم | چه خیره ورته نه کړه سمه ما |

ذم دخپلو د پردیو را معلوم شو ۔ کہ هر څو ساته خپل ځان له ذمه ما
په هغو لویو حنبرو شرمسار یم ۔ چې هر چا وته ایستې له فمه ما
سل غندنې پیغورونه رادچار شول ۔ چې به ځان ساته همیش له ذمه ما
ها بې ځکه به سرلونی نورے خاورے
چې خبر کړ د خوشحال له غمه ما

۹

لا منت لرم به داهم له آسمانه
نندارہ د اباسین له میرکلانه
به تیراه ، به سوات به خوږه دربه درشوم
بیا مے کوم لوری ته بیایے آسمانه
لکه ګوے هسے به حکم د چوګان یم
درست وجود پرهر پرهر یم له چوګانه
سرنوشت م له ازله مکر داوو
زه به څه لره ما نه کوم له چیانه
قدیمی د پښتنو جهل خر توب ــو
اوس به طمع به حرص دروی له میانه
که رسنتیا وایم شیر شاه داهسے نه و
لکه مونږیو پیدا د کوهستانه

پښتانه چه بې ننګې کا څوک یې څه کا
ګورستان لره یه درومو له ار مـــا سـه
چا ته وایم، څوک به لیکم هو مره نه دی
چه تمام شي له مذکوره له بسـیا سـه

دا داغونه چه خوشحال لري په زړه کښې
رغیدل به یې په تاکینږي سبحا سـه

* * *

د دې خط مفهوم هم په دوه ټکو کښې دا و، ((بیمار یم، د زړه حمله را باندې شوې ده، د مرګ او ژوند په کشمکش کښې یم . کله وایم په دې ننني وطني فضاء کښې د ژوند نه مرګ ښه دی . کله وایم د خادرې او وینې د بوټین په تقاضا د چخو لیونې ژوند ))

ما چه دا خط اولوستو نو اول حیران شوم چه دا څه علامې دي، څه اتفاقات دي. هغه خوا د خوشحال د کښت د دروازې خوله کښې د دې ماحول نه د مرګ کومې ته ځان غورزوونکي افغان پښتون، دې خوا د شیر شاه د ژوند، فکر او کردار په رڼا کښې د ننني پښتون نه کیله من ملګرې او د ابل لیونې کوهستانې چه ننني حالت ترکوري نو په یخو اوبو کښې غیرت نه خولې کیږي . رښتیا خبره ده ، چه بخړي شته

خو خوارهٔ وارهٔ . . ، احساس شه، خو قوت شوے . . ے
خو دد وی مرگ . . ناره وتل غلط کار دے ، دژوندیه . . رکښې
جزکه کیدل او قوت کیدل پکار دی .

ددے هرڅه نه پس ما بوله شپه په دغه خبرو فکرونو کښې بے
آرامه تیره کړه . سحر وختی ګل باچا راغلو او راته یې اووئیل : . . پولیس
او ډاکټر راغلی وو . هغه سړے یې د مزار د مخې نه پورته کړو او چرته
یې یوړو ، راعلم چه تا خبر کړم . هغه مریض چه پولیس په را ټګ اولیدو
نو دا کاغذونه یې ماته راکړل او ما زر په بړه اووهل . محافظ بیا
هغه کاغذونه ماته راکړل . انداز ه داوه چه پولیس ددے سړی د
حالت نه خبر شوے وو ، لکه چه یا ګل باچا رپورټ کړے وی یا زما
بیګانی ملګری پولیس ته وئیلی وی . هرڅه چه وو ، خو سړے
لکه چه هسپتال ته یوړے شو او کاغذونه ماته راورسیدل .

کاغذونه چه ما وکتل نو د هغه قلمی نوټونه وو ، کښلو به
لیکلی شوی وو ، خو مطلب یې معلومید و . ملګه یوڅه زر زرلوستل
نو دا فغانستان د ننني بدے ورځے او د هغې نه پس د تباهۍ او بربادۍ
واقعاتو او اسبابو باندے د هغه ذاتي یادا شتونه وو او دا ښه
معلومیده چه سړے څوک بنه باخبره ، وارد او په لوړه رسمی
( حکومتی ) چوکو پاتے شوے دے . د اعلیحضرت ظاهر شاه د تګ نه پس
تر اوسه پورے د بیلو بیلو مرحلو او حالاتو ژوره مطالعه یې کړے ده ،

د حکومتونو دعمل (رد) او د افغان اولس د عکس العمل (رد عمل) نه تر یو حده سِنه خبر دے او دد ے په هکله یے ډیر تاریخی مطالب لیکلی دی او دد ے هرڅه د پاره یے عنوان دا ټاکلے دے چه

" د تبر لاستے که د خپله ځان نه دے * تبرګی به له ماڅه غوښتل مینه "

یعنی دے د افغانستان د بربادئ ذمه وار د یا هرنی لاس نه زیات خپله افغانان ګنړی ۰ خو یو کاغذ باندے یے په غهو غهو ټکو دا هم لیکلی " باچا خان رښتیا وئیلی" پښتون په زور ځوک جنت ته هم نشی بوتللے او په چل ول او خوږه یے د دوزخ ته هم بوتللے شی "

او یو بل کاغذ باندے نوشته دی " پښتانه د باچا خان په وینا پوهه نه شول ، نو هیڅ فائده یے ترے وانخسته او د پښتنو دښمنان پرے پوه شول ، نو هغوی ترے سِنه کار وا خستو . چه دوئ یے په توره او نه وهلے شول یا په توره وهلو ورته نو رجنجالونه پیښول نو دوی هرچا په چل ول او خوږ ، ژبه خوار و زار کړل ."

یو بل ځاے لیکی : " دا څه لیونی دی د یل دول ته ګهیږی او خپل رور او کور د پښتو لاندے خرابوی ."

یو نوټ داسے دے : " روسیا نو کافرانو خلاف جنګ ته خو جهاد وئیلے څه معنا لرله ولے د هغے نه پس د مسلمان خلاف د مسلمان ورور خلاف دا کوم جهاد دے ؟

د کاغذونو د لوستو نه معلومه شوه چه دا سړے بر هیواد کښې

د باهرنۍ قوت. درا تګ نه پس د ټبا هئ په عمل خفه و ، خوګوزاره او انتظار یې کولو ، ولې چه د رور وړینې لوبه شروع شو او هغه انتها ته اورسیده ، نو دهرڅه نه بیزار شو او کوز. وطن ته راغلو او دلته یه شوق شوق ګرځید و ، هرچرته او هرچاته چه رسید ے شو اورسیدو او ددے ځاے پښتانه یې د نزدے نه سنه او لیدل نو بیا د جمرود دسره د خیبر درے په خوله کښې په یوه اوچته ټه ناست دے ، حیات آباد او پېښور ته ګوری ، چه خپل پکښې د غیرو په خدمت مست دی . د خیبر دره کښې په لوے سړک مالونو نه ډک ټرانسپورټ غرغور آوری ، چه ډیرو ولې خوارځ د دکاندارئ په ټرخو بد لوی ، بره د پیرنګی استعمار د لاسه جوړ پیکټونه سنګاری ، چه پیرنګے لاړ دے ، خو د هغه د نظام او استعماری پالیسئ نورسیورے لانز او سه سائل غواړی . مخامخ د برطانوی استعمار نه پاتے زنځیرهغسې پروت دے ، اخوا خاصه دارو د پولیټکل ایجنټ په کمربند ( پیټئ ) ملا تړلې ده ، د آفریدو او شنوارو بسونه اودری او تالاشئ کوی او په آزاد و قبائیلو مخصوص غیر مهذب قانون حاوی کوی . د "هری سنګهـ" په نامه قلاع لیدے شی چه د پښتنو په تاریخی نفاق لګه د نور ماړ پرته ده ، وغیره وغیره .

یو ځاے لیکی چه : " په افغانستان د امریکے او روس جنګ کښې د ډالرو په زور " غازی " یو خوا د اقتدار ډالرو خوند آخسے دے

اوس د "مصلے" په ځاے کرسئ پیسے لیوال دے او لیله رشوه‌ړے
بل خوا د سمګلنګ په دولت غټ شوے "کارو باری" د آزادو
قبائیلو ټیکه دار شوے دے او دا ټیکه په زور او زر ساتل
غواړی . او بل لوری ته برطانوی استعمار نه پاتے ملک صاحب
هم د پولیټکل ایجنټ په "دعا" او "دوا" هغه شان ځان د
قبائیلو مالک ګڼړی او داسے دده د ربوهانیانو په رقابت
او جنګ (مقابله) کښے د قبائیلو حیثیت او حقوق پښنولاندے
کوی . "

دده هرڅه سره دده په ذهن د سوات ، کالام او چترال
نه واخلے تر کوئټے پورے چه دے د ملی میینے او جذبے په
جوش په ډیر تکلیف او کړاوګرځیدلے دے او د رور او کور
مطالعه یئے کړے ده ، هغه نقشه یئے په فکر سوره ده . هره
ورځ د کوکی خیل ملک صاحب دیرے ته راځی او دلته کښینی ،
تماشه کوی ، مطالعه کوی ، غور کوی ، تحلیل (تجزیه) کوی
او بیا یاداشتونه لیکی .

چرته یئے لیکلی دی : " عجیبه قوم دے ، خپل د وینے ملی
رور تربور (دښمن) ګڼړی ، پښے یئے وهی او د وینے او خاورے
دښمن ته لاس په نامه ولاړوی او د هغه د خوشحالولو د پاره
د هغه باد مخکښے ګرځی ." چرته یئے وئیلی دی : " دده

خلکو نه ځان هم ورک دے او قوم هم ورک دے، دغرض دپاره هرچا پسے منډے وهی، خپله ورکیږی او نه پوهیږی.»

یو ځاے نوښت دے: «ما هر ځاے، هر کلی کښے رنګ رنګ جنډے اولیدے. ما تپوس اوکړو چه دا جنډے دچا دی؟ دوی به جواب راکړو: دا د فلانکی فلانکی دی. ما به تپوس اوکړو د دغه سره ستاسو څه تعلق دے؟ هغوی به چه څو مره خولے وے دومره جوابونه راکړل. ما به د ځان سره او و ئیل چه دکومو خلکو خوله یوه نه وی، ژبه یوه نه وی، جرګه مرکه یوه نه وی، قومی اراده یوه نه وی، اتفاق یو نه وی، هر کور په بیلا بیله دوان وی او هر سر خپله مشر وی نو داسے قوم ورکیږی.»

بل ځائے وائی: «په خوله چغے وهی چه "یا به یو کیږ ونکی ورکیږ و" ولے په عمل یئے د ورکید و دے اوکړ بنه پوهیږی چه ورکیږ و، خو یو کیږی نه.»

یو لیک ئیئے داسے دے: «چه د باچا خان جنازے سره بے تفریق او بے حسابه پښتانه تللی وو، که دغه د جنډے سره دغه شان روان شی، نو خپل قسمت به بدل کړی او قومی سیاست به کامیاب کړی.» دے کښے داسے تحریر هم شته: «فخر په پښتو کوی، خو د له د پښتون خلاف کوی.» او داهم لیکی:

« د پښتنو د حق ګټلو د پاره په خبرو هر یو جرنیل دے د ځان لښکر هم دے ، سپاهی هم ، خو عمل کښې نه لښکر لري ، نه جوړوي او د پښتنو د لارے جوړ لښکر ورانوي »

دے لیکی : « پوهان یئے د دنیا په حالاتو ځان ډیر پوهه ګنړي ، پرے دی آسمان کښې اوچت الوزی ، خو د خپلے خاورے په مرض یے سترګے پټے دی . » د غه شان د ده رائے ده :

« روشنفکران یئے په خارجی نظریو او انقلابونو زړنا عنورز ولو د پاره د دنیا د لویو مفکرینو نه ځان اوچت ګنړی ، خو د خپل "رور" او "کور" نه دومره روند پرواز کوی چه د خپل غرض دانه د آسمان نه وینی او د قوم د غرض دام ورته د پل لاندے نه ښکاری . » لیکی چه « عجیبه خو دا ده چه په دوړئ ززګونه خرڅ کوی او د پښتو د خدمت د پاره یو کتاب یا رساله په بیعه نه اخلی » د رحمان په مقبره څه لوے عمارت جوړ دے او د خوشحال په نوم لویه لائبریری ولاړه ده ، خو د رحمان د قبر هغه چرسیان ربابیان هم ورکیږی او د خوشحال په مزار د ښنکلو او به نه وی اولائبریرئ کښې « سرکاری کتابونه » یا تش په نوم مرکز لے شته - ولے د دے مشرانو ، د پښتنو د ملی فکر او ژوند د فلسفے هیڅ نشته . »

دا افسوس خبره ورته دا ښکاری چه " هر چا سره کښیے خپله درنه او د پل سیکه به و ایی » او دا چه « که د یوے جنړے لاندے روان

وی ، خو د دنړۍ لارے یې د مفادو په باد په بیلو بیلو لاړو کړے ګی "
او " ځان ورته هر وخت د هرځاے نه اول یاد دے او قوم ور ته
هیڅکله نه را مخکښے کیږی . "

دسړی په کاغذ ونو کښے د لرو بر هیواد داولسونو، پښتو او
بدبختۍ ډیرے خبرے دی . زما اراده وه چه دا دده مسوده
به پاک نویس کوم ، ژ به به ورته هوار وم او بیا یې د پښتو مجلو
کښے یا کتابی شکل کښے چاپ ته سپارم ـ خوما دا کاغذو نه
لا لوستی وو او ډیر پاتے وو ، چه په دے کښے محافظ او پولیس
انسپکټر راغلل ، زما نه یې هرڅه د هغې مالک ته یوړل او ما
د هغې یادا شتونه ټول او نه لوستے شول . بلکه د هغه په خوږه
اثرناکه پښتو کښے چه هغه څنګه لیکلی وو هغه شانتې ترے نقل
نکړے شول او دا هرڅه چه م لوستے شول د هغې نه په یاد اشت لیکم

د پولیس انسپکټر . ووئیل چه هغه سهې موږ د پولیس
هسپتال ته یوړو او په ډیر زور او جبر مو هغه ته غذا ورکړه .
اوس مو ترلے دے او په زور په خوله اورګونو غذا ور رسوو .
موږ سره یې خبرے نه کولے ، خو چه لږ سنه شو نو موږ ته یې او ووئیل چه
" د بابا د مزار محافظ سره زما کاغذونه دی ، هغه راته را وړئ "
او بیا یې دا سوال اوکړو چه " هلته مایو زلمے لیدلے و ، هغه را ته
راولئ " ولے د هغه سره ملاقات بند دے ، نو دا سوال یې قبلولے نه شو .

ما انسپکټر ته اووئیل " دوره ! یوه خبره م اومنه. هغه دا چه که دے مړ شو ما زر ترزره خبرکړه ، چه زه حکومت نه اجازت وا خلم او مړے یئ د بابا مزار سره خاودو ته اوسپارو"، انسپکټر وعده اوکړه. خو دا غریبانان ډیر دا سے وعدے وکړی ، چه د حکومت پالیسی " مخکښې " هغه هیڅ حیثیت نه لري.

ارمان چه د میرویس ، احمد شاه ، باچا خان د قبرونو نه را شړلے شو او د شیر شاه مزار ته نارسیدلے پښتون افغان به دے حال کښې مړ نشی او پاتے شی چه خپله مطالعه او د پښتو اوننګ د درد فریاد ، د خان په شان د وینے او مینے خاوندانو ته اورسولے شی. اوکه مړشو نو چه دده ارمان پوره شی او د خوشحال د مزار سر یا پښتو ته دده د خاورو خلے او به هغے دا کتیبه و لیکلے شی ، چه دا هرڅه نه موږ ته د عبرت تازیانه شی ، او به دے خاوره کښې چه کوم دولت او غیرت پروت دے د هغے د پاره د وینے او مینے دداسے بخرونه د آبادئ ، ترقئ او خوشحالئ رنړا جوړه شي ؛ دا کتیبه چه :

« د پښتو او ننګ په تکل مړ »

●●●

# ارباب صیب

ارباب صاحب کله د احمدزی ماماسره دوه په دوه ،
کله زمونږ دکلی د رک د پنځه واړو کمپونو ، د بېلو بېلو
خېلونو د مشرانو ګډسره ماته راشی ، خو هیڅکله دخیل کار
ضرورت یا مطالبې سره ماته نه دے راغلے . هرځل چه راشی
دکیمپ د مهاجرو رونړو د پاره راځي . که دحکومت سره
څه د اسے معامله وی چه دوئ ته دسردردوي یا د دے
کلی علاقے او بازار سره څه خبره پیښه وی ، نو راشي . چه
هرځل راغلے دے ، نو ماسره یې د مقصد خبره کړے ده
او خپل ځان یې راته نه دے ښایلے . او ماهم کوشش نه دے
کړے چه تپوس ترے او کړم چه څوک دے ؟ افغانستان
کښې د کوم ځاے او کومے قبیلے او کوم ژوند ژواک خاوند
دے او دلته په څه حال دے ؟ ځکه چه زمونږ د دے مهاجرو
رونړو داپوخ عادت او کلک خوئ دے چه دلته دوئ د

د خپلې افغانستان د ژوند او حالت په هکله څه وئیلو ته
ځان ساتي او خپلې پوره تعارف نه کول غواړي . د دوئ دا
روحیات دی (زه ورته ننګ وایم ) چه دلته په حیا او پرده
کښې ژوند کوی . چا سره د خپلې تېر وخت او افغانستان
کښې یاتے ژوند خبرې نه کوی ، بلکے که څوک یې پېژنی هم
دوئ پرے ځان نه باندے کوی .
چه څومره څوک هلته په خونه او نخری درووند دے او
په قام او وطن کښې معتبر ، نبکاره اوخوشحال دے ، دومره
دلته غلے،خاموش او ښکنګ وخت تیردو کښې کرځی . د دوئ
خیال دے که چاته په دے در په در ، ورک ویجاړ حالت
کښې ځان او حیثیت ونبایو ، نو درنبیږو نا سپکیږو . دوئ
زړه کښې وائی چه هر څه چه وو ، نو چرې به وو . اوس خو
د پاکستان د کیمپ په خړه خاورینه بے دوله بےرنګه ، بے
پردے ، بے ساز وسامانه ،غوجل کښې د لئ شوی پراته یو،
هر څه ته حاجت مند ، هیڅ موسم نه دی ، نه د سیال دسیالئ
یو ، نه مو کور او ژوند په څه پوره دے ، په دے حال
کښې چا ته څه ځان او نبایو "زما د مور با هو چرے به وو"
اوس خو د لور د سر د پړونی غم خوری .
ولے د ارباب صاحب قو اره ، خبرے او خوئ خصلت ته

چه م کتلي دي ، نو څوک د لويې خوږې راته سيکاره شوې دې ، په سترګو م خوږ لګيدلې دې ، خو هغه موقع نه ده راکړې چه ورسره مجلس اوکړم . دغسې زما تلوسه زياته شوې ده ، چه دې ځان سره کښينوم او خبرې ورسره اوکړم .

تيره ورځ چه ارباب صيب راغلو او ما د ناستې کوټې ته بوتلو چه خپله خبره راته اوکړي . نو مخامخ يو عکس (فوټو) ته يې پام شو ، خبرې يې هم کولې او د هغه فوټو نه يې سترګې هم نه ايستې . ماته دا فوټو دافغانستان مشهورې اونامتو اديبې ، عالمې ، سياستدانې او بهادرې خور معصومه جان (معصومه عصمتي) راوړې دې . هغه چه افغانستان پريښودو ته مجبوره شوه او پاکستان ته راتله نو زما د پاره يې دا فوټو دخپل ډرائنګ روم د ديوال نه راکوز کړو او اکوړې ته يې راته راوراسولو ، ځکه چه دا فوټو زما ډير خوښ و او دې ته يې م کتل ، نومعصومه جان پوهه وه چه په ما څومره ګران دې . هغې چه کور پريښو ، نو هر څه يې پريښول ، خو چه لږ څه يې راوړل نو دا يې زما د مينې اوخلوص په جذبه هلته پريښو او تالا کيدو په ځاې ماته راوراسولو . دا د کابل په اصطلاح داسې

تابلو دہ چہ پکښې یوه لس کلنه جینۍ ، بله ماشومه خور یې په شا سوره کړې ده او یو ځنګل غونډې ځای کښې په جاړو بوټو کښې روانه ده ؛ دواړه دخپل خوا ګوری ، دواړه د ګل په شان ښکلې دی او چاپیره منظر یې ښینکې او ګلالې دې ، خو وران ویجاړ دې . مشره خور په حیرت داسې ګوری لکه چه ستړې ستومانه وی ، خو روانه وی . او کشره خور یې په ساده معصومه څېره د ځان او جهان نه ناخبره مونږ ته ګوری. (ددې تابلو څخه زما په ذهن یو تاثر پیدا کېږی ، زمونږ د ملی ژوند تاریخي مرحله ترې جوړېږی چه زه هغه د لته نشم بیانولې ) ( او افسوس چه دپېښور دخټک په سپېره کور کښې دکابل د وړوکې خور د ناستې دپاره هم څه نه وو )

چه ارباب صیب خپله خبره خلاصه کړه ، نو زما نه یې تپوس اوکړو چه دا تابلو چرته وه ؟ ما جواب ورکړو چه دا دکابل دپښتنې خور تحفه ده ، چه په ویښو او هور کښې پروت کابل نه یې مانته د چېرو یادونو خوندي او تازه ساتلو دپاره رالېږلې ده . هغه تپوس اوکړو معصومه جان خو نه یادوې ؟ ما اووئیل هغه ده . بیا یې تپوس اوکړو هغه چرته ده ؟ ما جواب ورکړو دالمان په لوړ لاړه ده. ددې سوال جواب نه پس هغه خاموش شو او فکرونو کښې ډوب شو.

دلته ماته موقع په لاس راغله . ماتپوس اوکړو ارباب صاحب څنګه پوهه شوے چه دا فوټو ماته هغې راوړے دے . د دے جواب کښې هغه اووئیل : هغه زما عزیزه هم ده او زما د هغې کورنۍ او وزیر صیب سره ډېر نزدے تعلق هم دے . دا تابلو د هغوئ په سالون کښې وه او ستا نه به هیروي ته هغې بي بي زمونږ کلي کښې مونږ کره میلمه کړے وے . مونږ در ته ډېر خلک راجمع کړي وو ، تماشے مو درته جوړے کړے وے . ډېرے ډزے مو کړے وے او ستا زمونږ ځاے ډېر خوښ شوے و .

د دے ورځ نه پس ارباب صیب ماسره ګپ شپ شروع کړو او زه د هغه د هجرت دپس منظر او دلته او سیدو د حال احوال نه خبر شوم .

ارباب په بغلان کښې د درے زرو کندهارو کډه و دمشر وکیل عبدالرشید خان زوئے دے . دوی هلته په ګرداو حیرحسن تال کښې زمکے او شته منئ لری ، خانان دي نو د هغه ملک په اصطلاح ورته ارباب وایي . دده نوم محمد عظیم دے او دے د بغلان ولایت د ملا قانونو سرپرست عمومي وو . اعلیحضرت ظاهر شاه به هم د دوئ میلمه و . باچا خان هم چه د بغلان په دوره تلو د دوئ کره به دېره کېدو .

دوی دولایت مرکز کښې د کانونه، بلکه ځکونه او مکانات لري او په زرګونه جریبه آبادو ځمکو کښې یې غلې، میوې، قره قل پوښه او نور حاصلات کیږدل. خدای دې برخه ورکړې وو او ښه د ارباب په ژوند یې و. نن د اکوړې د مهاجرو کیمپ کښې په خړه کوږ له کښې پروت دے. د مهاجرو د ډېرونه په کارډ راشن ورې اوخوري. دتنورهسے ګرم اوړي کښې به سوړا ړا، شګلوړې او کانړیز ځمکه د بال بچ سره خولو کښې پړ پروت تو ده هوا کښې سوځي او ژمي کښې یخ ساړه، تیز طوفاني باد او دجړې باراتونه یې وهي. په کیمپ کښې د نورو زرګونو مهاجرو روڼړو سره تنګ ترش راحصاره آبادې کښې داسې وخت تېروی چه نه مری نه رغیږی اوچه د کلی بازار ته راشي، نو لکه د نورو بے شمیره "کابلیانو" ځمکے ته کوری، آویزاند روان وی. ارباب اوس د کندهار ومعتبر نه دے د "کابلو" نه یو "کابلے" دے، او بس.

د اولے؟ دا ځکه چه دے یو افغان دے. دده ژند د استقلال، عنعنے او دین ژوند دے، د غیرت او ایمان ژوند دے. د داسے ژوند سره په دوزخ کښې خوشحال دے چه داسے ژوند نه وی نو "جنت" یې هم ورته نه دے پکار! او ځکه خوچه دوئ اولید ل چه روسی فوځونه افغانستان ته

راغلل ، ددوی استقلال ، عنعنې او دین باندے بد اولګیدل.
د مزار شریف ، کندُز ، پلخمری او د هرې خوا نه خبرونه راتلل
چه خاوره ، ناموس ، ملی استقلال ، مال حال او هیڅ د تجاوز
ظلم او زیاتی نه محفوظ نه دی . د دے واقعاتو د دوئ ملی
غیرت او دینی جذبات راوپارول ، جرګه یئ اوکړه ، راپاڅیدل
او جرحسن تال کښے یئ په روسی فوځ حمله اوکړه ، ټینکونه
یئ ورته اوسول او خراب یئ کړل . موټرونه یئ څه اوسول
څه راوتښتول ، وسلے او د راکټو نو مرمئ یئ ورته تس نس
کړے او چه څه یئ تاراج کولے شوے هغه یئ تاراج کړے .
او چه څه موټرونه او مهمات لاس ته وراغلل هغه یئ غرونو
ته اوړسول . د غه شان دوئ د خپلے علاقے روسیان ووهل او
زړه یئ پرے یخ کړو . په دے نښته کښے د دوی نولس شهیدان
ورکړل . ولے د دے په دریمه ورځ روسیانو په دوی حملے
شروع کړے . په اول حمله کښے یئ ترے اووه تنه شهیدان کړل .
د دے نه پس دوئ ګړے محفوظو ځایونو ته اورسولے او په
مقابله اخته شول . د ښمن پرله پسې اووه ځلے سخت عملیات
اوکړل ، خو دوئ یئ مات نکړل . په بمبارو او ګوله بارو د دوئ
ژوند په هورکښے شو ، خو دوی وښتیله (فیصله یئ اوکړه) چه مونږ ټول
درے زره کورونه کندهاریان به پرے شهیدان شو ، خو ځاے ورته

نه یې پرېږدو.

دده وینا ده: "چه روس سره جنګ و، جهاد و، نو ټول کندز او بغلان په اتفاق جنګیدو، قومي چغه وه او قومي معرکه وه، خو تنظیمونه مینځ ته راغلل، د تنظیمونو ګروپونه او ډلې جوړې شوې. زمونږ قوم دشت ګبر، زرو کم، آب کول، ګودره، جرحسن تال، چا شنې تپه وغیره جرګه اوکړه چه مونږ ټول قومي شریک جنګ کوو او تنظیم بندي نه کوو. مربوطو قوماندانانو ته موخبر ورکړو چه مونږ د روسیانو سره په روح جنګیږو او دکلي جنګ نه کوو ځکه چه مسلمان پکښې قتلیږي. خو زمونږ خبره چا وانه وریده. چه دده نه پس قوم کښې جنګونه راپیدا شول، یو دوه جنګونه مو اوکړل خو آخر مو سوچ اوکړو چه که مرو نو مرګ موځ اب دے او که جنګیږو نو د خپلو افغانانو رونړو په وینو مو لاس ککړیږي. نو ټول قوم زروکم کښې فیصله اوکړه چه پاکستان ته هجرت کوو. په اتلسم جوزا، اتم د رمضان کال ۱۳۶۴ ه ش په یوه ورځ دولس سوه کورونو مازیګر څلور بجې حرکت اوکړو. اته سوه کوره په چترال او دوه سوه کوره په باميان روان شوو. شپه مو دانه غوری ته اورسوله. دانه غوری نه د شپې روان شو سحر د سید کیان باغ ته اورسیدو، هغوی مو ډیر قدر اوکړو او راته یې اوویل

مونږ سره یالے شئ، خو مونږ اونه منل او وار روان شو. کله په غرونو کښے شپه، کله په ځنګلونو کښے او ولس ورځو کښے لوګړ ته راورسیدو. ځوانان به په لاره یوه ورځ زمونږ نه مخکښے تلل، لار به یئے را ته صفا کوله او کمین به یئے نیوو. مونږ په بره کی راجان کښے اطلاع واخسته چه زمونږ ځوانان چه زمونږ نه مخکښے روان وو، هغوئ په دشت لوګړ کښے شپږ کسان سره د خپلو سنګو او ماشومانو شهیدان شول، نو مونږ لاره بدله کړه او د خرخ خروار او روحانی صاحب په لاره باندې راغلو. مونږ په روحانی صاحب کښے په باغ کښے د سنګو، ماشومانو او مال حال سره پراته وو، نو بمبار طیارے را باندے راغلے مونږ د باغ نه اووتو، تس نس شو، په تیږو کښے پټ شوو بمباری را باندے اوشوه، باغ او زمونږ آسونه یئے اوویشتل خو مونږ خدائے اوساتلو، مانیګر بیا را ټول شوو. زما ماشوم ځوئے چه په پینبه یئے بغلان کښے د توپ په ډز د یو ډیوال غور ځیدو سره مات شوے وے، زمونږ نه ورک شو. چه نه ور پسے ګرځیدم نو دے دیوے تیږے لاندے اوده پروت وه. مارا واخستو، چه راپورته مے کړو، نو ده چغے کړے: "آبا بوئے تلم درنه." دغه شان مونږ دهلته نه روان شوو، ځدرانو ته راورسیدو. چه بیلر یا

بېلار کښې مو شپه وه، نو سبا اختر و. خلکو اختر کولو
موږ ټوپ. هلته نه د شپې را روان شو، په توده شپه مو
لاره غلطه کړه، اخوا دېخوا ګرځېدو، آخر مجاهدين
راغلل لار يې را ته سمه کړه. لمر ختا ته د خوست او ميرانشاه
منځ کښې د چارتراشو ځنګل ته را ورسيدو. هلته مو واورېدل
دلته را باندې بيا بمباري وشوه. د شپې د شپې را روان شوو
ځان مو د ميرانشاه پاټک ته را ورسولو. هلته مو آسونه
خوشې کړل، موټران مو کرايه کړل او کچه کړېڅ ته را ورسيدو
چې کمشنر (د افغان مهاجرينو) راغلو هغه را ته او ويل چې
د عيسې خيلو (ميان والي) کيمپ ته لاړ شئ. موږ ورته
او ويل بل هيڅ چرته نه ځو اکوړې ته ځو. که ته مو لېږې
که نه لېږې. موږ هلته ورځو، نو دلته يې را ولېږل لو.
سحود يا نو خيمې او موټران راکړل په هغې کښې راغلو. دا ټول اته
ويشت ورځې سفر وو او هغه اته شوه کورنۍ چې په چترال
را روانې وې په هغوئ د پنج شير په سيمه کافر کوتل کښې بمباري
اوشوه، شلګو نه يکښې شهيدان شول، د قبرو نو کنستلو وخت نه وو
نو هغه مړي يې د تيږ و لاندې کړل او د غه شان پاتې شول.
د هغه بمبارئ مات ګوډ کسان اوس هم دلته کيمپ کښې شته.
دوئ دوه څلوېښت[42] ورځو کښې را ورسېدل.

د ارباب په دے قیصه کښے غیرت، قربانی او عبرت دے، سوچه افغانیت دے. نو دده په اِجازت دده د نامے او تعارف سره م او لیکله او د نورو د غه شان واقعاتو د تاریخ سره به یئ په وخت که خدائے یئ موقع راکړه، خو دلته م سرسری ذکر کړه.

ارباب چه دا خبرے کولے، نو څوا کښے ناست زما د حجرے کسان درېدیدل او څنه پکښے ژړیدل، ولے د ارباب تندے رونړ او سترګے عقابي وے، خو په څېره به یئ کله د غیرت دولولو سورے ښکاره شو، کله به د غُصے د لمبے تاؤ او ځلیدو او کله به یئ په دے کړاؤ مصیبت او قربانۍ د فخر شونډے غوړے شوے.

ما تِرِ تپوس او کړو، ارباب صیب! اوس د کلی وطن نه خبرېږے؟ جواب یئ راکړو: "ولے نه خبرېږو، چه موقع پیدا شی څوک لاړ راشی، خو څه خبر شو. یا هغه وخت ورچه وئیل به یے "مرگ خواهی کندوز برو"، چه زمونږ نیکونه پلرونه هلته لاړل، نو هر څه یئ ګل وګلزار کړل او د هغه ځاے خلکو سره مو داسے خونړ، وررورولی جوړه شوه لکه د یو نیکه اولاد. ولے اوس حالت بدل دے، عام خلک او وطن هغه شان دے، خو نور به څه او وایم افغانستان وران پروت دے، خداے دِ یئ

ودان کړي ."

ما ورته او وېل" ستاسو خیال دے بیا به هغه شان وخت راشي؟ " هغه رابېر شو او ووئے وېل :" هو ـ هو ـ هغه وخت را روان دے . افغانستان بختوره وطن دے ، که د بېر باراتونه ، واورے او طوفانونه پرے راشي ، هغه تېر شي، بیا ګل ګل، میوه میوه شي . افغانستان د غیرتیانو خاوره ده ، هیڅ بلا ئے نشي خوړے ، خو خدائے پاک دے زر خپل کور جوړ کړي"

ما ورته او وېل : " کور به ئے زر جوړ شي؟" هغه به د بېر باور سره جواب راکړو " کور ئے جوړ وو ـ جوړ دے او جوړ به وي خو باهرنے لاس رانوتے دے ، خدائے د هغه زر اوباسي"

ارباب صیب زما د نورو سوالونو جواب کښے تشه خندا کوله لکه چه بحثونو ، مسئلو ، اختلافاتو او ډلو کښے ئے ځان نه ملوث کولو . څادر ئے د ځان د لاندے نه راواخستو څنډ ئے ورکړو په اوږه ئے کېښنو او سلام ئے واچوو او روان شو . په روانیدو کښے او دریدو او وئے وېل : " افغانستان به بیا هغه افغانستان شي د خیره ، خو د هرچا نیت به پاتے شي .

۱۸/۲/۱۹۹۶

لیکوال - پیښور تاج

# د بنو ماز یګر

نوید ګله !

د مارچ د میاشتې مجله د راورسیده، د داخل رم چه پرانسته نو اول نظر رم د غازی سیال په نظم "د بنو مازیګر" باندې پریوتو. غازی سیال زمونږ د دې وخت په هغه نامتو شاعرانو کښې دے چه د فن نزاکت او ښکلا او دږوندانه خوانږه تراخه د شعر په رنګینو کښې په مهارت سره بیانولے شی او د خوږ آواز، خپل مخصوص ترنم او د بنوں سُر کښې خپل کلام په ساحرانه انداز اورولو په لحاظ ممتاز مقام لری. د پیر ګوهر د ښکلی آواز او ځانګړی وزن د کمال او د رحمت شاه سائل د منفرد رنګین طرز او حسین انداز د اثر سره سره چه دده په خپل خوند او رنګ اشعار د پښتو مشاعرو نه په اولس کښې خوریږی، نو وینه کښې ګرمی، ذهن کښې رڼا، فکر کښې جدّت او د دې دور د ادب د پاره د فخر و ناز سرمایه پیدا کوی او پښتون هر څوک هر ځائے چه وی تل په پرے مست وی.

د روپشت[۲۳] کاله وشول چه ما بنون نه دے لیدلے. په بنون تیر شوے یم، خو چه څنګه به ما لیدلو هغه شان م لیدلے نه دے، ځکه چه زه برهبواد کښے وم او چه بیا راغلے یم نو لا تراوسه موقع په لاس نه ده راغلے، ګنی نو که دلته یم که هلته پاس وم، بنو او د بنو دیرخه م یادیدل او یادیږی او بیا د سیال خبره ماز یګر خو یے ماز یګر دے، چه چا یوځل سم په رښتیا لیدلے دے نو هیروله یے نه شی، که هیر یے کړی، نو ځان د سوچه پښتون نه وایئ. او که چا نه دے لیدلے نو د پښتنو ښار یے نه دے لیدلے، البته که چا کندهار لیدلے وی او د کندهار مازیګرے یے لیدلے وی، نو هغه ددے شرط نه باهر دے.

زه چه هلته وم او کندهار ته به لاړم نو بنو به رایاد شو. یره! هغه مازیګرے به د بنو مازیګری نه ډیر زیات "مست" وو، خو دا د هغه وخت خبره ده چه په کابل کښے محمد ظاهر شاه خان و، یا سردار محمد داؤد خان. د هغوئ نه پس یو بل دور شروع شو او بیا د یاسه پرے یو بل شان دور راغے، چه د کندهار په نوم ښار خوشته "،"خدا ئیے د پښے لری، خو دا هغه کندهار نه دے کوم چه و. خدائیے پاک بیا د میرویس او احمد شاه کندهار، د میلو، سیالو، تماشو، سیلونو، رونقونو، مستیو او پښتو کندهار، کندهار کړه او نوے کندهار د پښتو په پت

اوخوند رنګ زوړ خو دنوی دُنیا د جدّت ، تعمیر ، ترقۍ او اولسي خوشحالۍ نوے ، د دُنیا په سیالو ښارونو کښې سیال کندهار!

سیګل صیب خو دفن په ژبه ډیر په استاذئ سره د ښو د شوقیانو ، یارانو ، حُسن او حسن پرستۍ ، ډلے ډلے ښوځو هارونه په غاړه ګلانو ذکر داسے کړے دے چه هرځه یئ ویلی هم دے او وستائیلی هم دی ، لکه : مثلاً

" راغونډه د کلی کلی نازنین او نازولی زما د ښو ښکلی "

" لړئ لړئ ګلونه جدا جدا رنګونه پیرلی امیلونه " وغیره

وغیره او د ښو په بازارونو کښې دیوسرنه تر بله سره ، چوک کښې ، دروازو کښې ، پارک کښې ، د پارک په لارو کښې او د ښو د ښار په ځنګ وځنګ په سرکونو " رنګینئ ، ښکلا ، زندګئ ، شوخئ او مستئ " چه یئ لیدلی وی ، نو تش یئ دومره او وئیل :

" دا خومره ښائسته یئ راته مه ګورے د نظره دښو مازیګره ! "

که ده د کندهار بازارونو ، سردے باغ ، ارغنداؤ ، بابا یئ ولی کښې د درانو او غلجو پښتنو د غرور و مستئ نه ډکو زلمو په خیال خیال ګرځیدل ، د ګلانو نزاکتونه ، د رقیبانو ډلو ټپل پسے شپیلی وهل او ډول ډول آوازونه کول ، میلے تماشے ، مستئ او نخرے لیدلے وے نو د شعر قلم به یئ غور ښځولے وے ، د تخیل د نیلی نه به راکوزشوے وے ، د احتیاط زنځیرونه به یئ

شلولې وي يا به په بازار کښې هک دک ولاړ وي چه کوم خوا ته اوګوري. يا به د باغونو په ميلو کښې د کندهار د مستو ځوانانو په شوخۍ ليونے شوے وي او د شعر په ژبه به يې کندهار کندهار چغې وهلې.

د کندهار انار او انګور دي او د بنو وريشه (حلوا) ده. مقابله يې سره نه کيږي، چه هغه خوږے نو وايئ به چه که جنت کښې دانه وي نو نور به څه وي په کښې او چه د اخوړے نو وائي به چه چا ژوند کښې د اوريشه (حلوا) نه وي ليدلې نو هغه به څه ليدلي وي او بيا د بنوڅو د پاره خو هر مازيګر وريشه خوړل داسې نشه ده چه نو رهيڅ نه وي خير دے، خو وريشه د وي. مونږ د بلوچستان د مچ خولې جيل کښې قيد وو، مونږ سره د بنو د مشران لکه رحمزاد خان، مير داد خان او سالار يعقوب خان او نور هم وو. نو دوئ به سهرے دوډئ جمع کولے او دهغې نه به يې وريشه پخوله، بيا به يې خيله هم خوړله، په مونږ به يې هم خوروله.

د بنو او کندهار به کومه کومه خبره ياد کړم، چه يو ياد يې را نيسم نو شل نور يې راته مخے ته کيږي. لکه دغه دے د بنو د بازار د مسالے دکاندار را ياد شو. هغه مساله چه د خوشحال خان کاکا جي ژوئ ګل جنان خټک په کراچۍ کښې د «مولاناکا مساله» په نوم

خرخوله . نوهغه پرے د کراچۍ د نا ته خان کوټ د خاوُرو کور کی « پښتو کور » نه د بنګلو مالک شو .

زه یوه ورځ دبنو بازار کښے د یو مسالے واله ملګری سره دهغه په دُکان ناست وم ، نوهغه دبنو د مسالے صفتونه شروع کړل ، وئیل یئے خټک صیب دهوتی نواب هغه به هره میاشت دهغه دخاص لنګر دپاره نارنګی ( نارنګ چند ) سیټھ د دلته نه ددے مسالے بورئ لیږله . ډاکټر خانصاحب به په سپیشل سړے د بنو مسالے پیسے رالیږلو او د کالاباغ نواب به پله مساله خپل لنګرخانه کښے نه پریښوه بغیر د بنو د مسالے نه . اوخټک صیب! دهندوستان راجګانو او نوابانو ته به چا ګرانۍ تحفه وړل غوښتل نو د بنو مساله به یئے ورته وړله ..

دُکاندار به یوه ساه دبنو د مسالے دومره صفتونه اوکړل چه دومره به د لکنهو مرزاګانو د خپلو « بلبلو » او د ډاکے جولاګانو د خپل « ململ » نه کولو . چه یو به وئیل چه ثابت تان دماچیسو یو ډبے ( داورلګیت یوه قوتۍ ) کښے راځي او بل به وئیل « ثابت تان دیوے ګوټے د ګوټۍ ( انګشتری ) نه تیریدے شي .

خو چه ددے مقابله کښے م دکندهار دبازار غټی دُکاندار نه دهغه د کرک ( مېز ، بتهیرے ) د جنګ صفتونه او دهغه دتور

تآروُ د نعرو قصيدے او د تيټر (تنزرى) دخاروګانو د
ګوزار قيصے را ياد ے شي او دا م را ياد شي چه دا ته يے ووئيل
"پيشوريه ! لالا جانه ! قربان دِ شم، زمونږ خان ته دخيبر
نواب يو بانګى (چرګ) راليږلے و . . هغه چه "شير سرخ" د
خان سره په جنګ واچولو، نو درے ورځے دواړو مرغانو يو بل
ټيکه ټيکه کړل، ولے آخر د هغه خان چرګ اوتښتيدو او زمونږ
دخان چرګ ولاړ پاتے شو. خو لږ لحظه پس را پرېوتو او د
زخمونو نه مړ شو. مړ شو خو او نه تښتيدو.."

دا خبرے څومره رښتيا دى، څومره مبالغه يا څومره
دروغ دى، زمونږ د دے سره کار نشته، خو به دے کښے يوه
خبره ښکاره ده چه هغه د بنو او کندهار دخيل فخر او لوئ
په خوند خوند قيصے کوئ لے، د پښتنو د سيالئ دلوئ دروحيے او
دتاريخى افتخاراتو د باؤ شوى نفسياتو اظهار کښے نه خوښول
دخيبر پټکى شمله هم ځکه ساتل، خپل خپ سر د بل زرين
تاج ته ټيټ نه برداشت کول د فريد خان (شيرشاه) دهندوستان
د شهنشاه بهلول لودى په دسترخوان د پښتنى بے نيازئ او
نشے به غرور به غوښے پسے خنجر راوېستل، د ايران د شهنشاه
دربار کښے چه د سرو زرو د کمر بندونو، دجواهراتو د بازوبندونو
او د ريښمو د قباګانو زور وو او د پارس شهزادګانو او اميرانو

سروونه ښکته اوسترګې تیتې نیولې وې ، د میروس په کورکښه خامتا ترلې ملا ، سر پورته ، څټ نیغ اوسترګې اوچتې وې .

هو! دا د ښېښتنې هوډ اوملي غرور ، د سړي سوچه وینې دجوش اومستۍ رنګ دے - هو، هو، هو ، پښتنی هوډ ، ملي غرور

آه ، آه ، آه پښتنی هوډ اوملي غرور .

وایي چه دا دتاریخ مست لیونی داسې په خپل هوډ غاوره وو چه د زور او زرخاوند به که خپل ورور وو که پردے ده پرے چرت نه وهلو . "

کندهار کښې مشهوره تاریخي خبره ده ، وایي چه احمدشاه بابا ډهلي فتح کړو او وایس راتلو ، نو چه کندهار ته په ډیر شان وشوکت ، فاتحانه رعب داب ، خوشحالۍ اومستۍ ، د ډولونو په ګړا ، د سرناګانو په سازونو کښې په زور شور راننوتلو چه دکندهار چوک ته رارسیدلو نو دغه وخت دلته څو پښتانه ځلمي ناست وو لوبې یې کولے ، بیجلۍ یا مردکی (بلوری) یې کولې او په هغې کښې مشغول وو ، چا اوویل چه داسے مست ډول غزنیږي ، دا څه چل دے ؟ هغوئ ورته اوویل څه چل دے خو وایي چه دزرغونے زوے را روان دے ، څه یې کړي چه داسے په ډولونو مست را روان دے ، خو ایله بیله ډهلي یې فتح کړے دے ، نور یې څه کړي دی ، کوئ خپل بیجلۍ کوئ ،

کوی به هغه خپل کار۰»

دے ته چه څوک هرڅه وایی، وایی دِ ، خو حقه خبره داده چه دا هم هغه ملی روحیه ده چه د خپله پښتونخوا رایاده شی نو د دهلی تخت ته لته ورکوی او ترے راروانیږی.

دا هغه ملی روحیه ده چه دکور نه به غریبئ پسے ورک سوو سپین پښتون ته یو تور تیلی بابو پښنه به جولئ کښے اېښےوی او دا دخیبر دجولئ او د تاترے د سر بچے لګیا وی هغه ته بوټ پالش کوی. په دے مزدورئ نه شر میږی او نه غصه کیږی، خو چه چا معتبر نه معتبر سړی د ده پښتو خوبږږدِ ننګ خو پریږده، مشر کشر هم خیر دے پریږده، هغه خولویه خبره ده، په هغ خو سر ورکوی، خوکه دده د نسوارو ډبی ته چا سپک اوکتل، نوکه دے څوان وی، نو سترګے اومتے به ورته اوښایی اوکه کشرهلک وی، نو لکه د مچئ به وربورے اونښلی.

خو دا هم واوره! یو وخت چه مولانا عبدالحمید باشانی د سی بنګله دیش اوبخوانی مشرقی پاکستان اوسیدونکے او دښتنا عوامی پاکستان صدر و، دخپلو دیرشو ملګرو لیډرانو سره پښتونخوا ته راغلے و، با چا خان هغوئ بنو ته روان کړل، د بنو نه باهر دد وئ مخ (استقبال) ته لوئے جلوس راتلو

په هغې کښې د دې شمیره پښتنو د بهیر په سر کښې څه دولس[۱۲] درانه
درانه ډولونه غږیدل او لښتۍ (هلکان) گډیدل. ښاغلو ښوڅو
ځوانانو ډول ډول چغې نعرې وهلې او د غږین ډزونه یې کول.
یو بې مثاله عوامي جذبه، زور، شور، قوت او ولوله وه. که زوړ
و که ځوان و هر یو ببر لښکر و. باشاني صاحب چې دا هر څه
اولیدل، نو هغه هم راولړزیدو او ملګري یې هم مست شول
دوی هم کله لاسونه وهل کله شورول شروع کړل. په دې
دوران کښې مولانا صاحب بابا ته اووئیل «ته دا قوت لرې او
یو یونټ د ډباندې لا قایم دې.» بابا هغه ته مسکې شو،
جواب یې ورنکړو، ځکه چې دا د جواب وخت نه و، د جوش
جذبې او قوت د نندارې وخت و، کنې نو هغه ورته وئیلې
شول چې تا ته خو د دې د پښتنو یو صفت ښکاري خو هغه بل صفت
دِ نه دې لیدلې» چې هغه تربورولي او بې اتفاقي ده. هم
د دې جلوس د وه مشران وو، یو صدر رحمزاد خان
بل سالار یعقوب خان - دواړه په دې جلوس کښې یو ځایې
روان وو، خو دیو بل مخالف وو. دیو بل په عزت خفه
کیدل، د یو بل ښنې یې وهلې، تر دې چې دواړه لاړل
وفات شول، خو بې اتفاقي ترې نه اونه وتله، نو
پښتانه به هر څه هر څه وي او هر څه به کوُلې شي،

که دبنو دی که دکندهار، خو تر هغې پورې هیڅ نه دی او هیڅ نه شي کولې ترڅو چه پکښې ملي اتفاق پیدا نه شي.

اتفاق په پښتانه کښې پیدا نه شو
ګني مابه د مُغل ګریبان پاره کړې

(خوشحال بابا)

۳/ ۳/ ۹۴

# ژوبل احساس

زمونږ د کلي په لوئي بازار کښې د لارې دواړو غاړو ته د ريړۍ (ګاډيو) قطارونه ولاړ دي. څوک سبزي خرڅوي، څوک ميوه دانه څوک منياري وغيره. دوئ دومره ګنړګوڼه جوړه کړې وي چې په لاره تګ راتګ اسان نه وي.

په دې بازار کښې يوه زړه غونډې ريړۍ د څه موده نه اوړي راوړي. دا ګاډۍ (ريړۍ) دومره زړه ده چې يوه پايه يې يو خوا کږه وږه روانه وي بله پايه بله خوا او چې سړے ورته ګوري، نو وائي "دغه ده راغوررزيږي."

چې اوګورے نو په دے ريړۍ کښې يو موټے مړاوی باټينګر (بانجان) يوه لېبه ټماټر، يو جولۍ بينډۍ او يو قوده ګنده نه پراته وي او په زړو خړ جامو کښې يو د لوړ قد سړے، چې په سر يې زړه خيرنه دکيږے ټوپۍ (خولۍ) او په پښو شليدلي ګنړ لسی چپل وي، روان وي، لاسونه يې د ريړۍ په پښنړ ل وي چې

دِ که ورکوی . په پښتو رو رو داسې روان وی چه د کمزورئ نه ټول خوځی او په سترګو هر خوا اوتر اوتر ګوری . سړی نه پوهیږی چه دے نابلده ماحول نه بوګنیږی که اخوا دیخوا ګوری چه څوک به راشی چه دده نه څه سودا واخلی .

چه کله زه مازیګر ماښام په دے بازار تیر راځم ، نو تقریباً ټول دسبزئ دکانونه بند وی ، خو دے کله یو ځائے کله بل ځائے دخپلے ریړئ شاته ولاړوی . کله چار چاپیره ګوری ، کله خپلے سبزئ ته ګوری او کله په فکرونو کښے ډوب وی او ګوتے شمیری .

ما چه دا ریړئ او دا سړے پړاول ځل او بیا وار په وار یو څو ځـلی اولیدو نو ورته م فکر شو چه دا څنګه ریړی وال ، څنګه یے سودا (متاع) او څنګه یئے حال دے . پوه خو شوم چه د بازار دنورو ریړی والو په شان افغان مهاجر دے ، خو متوجه ورته ځکه شوم چه نه یئے دنورو ریړی والو په شان کړه وړه وو ، نه د که ریړئ ، نه سمه سودا ، نه سم رفتار ، او توجه م هره ورځ په دے زیاتیده چه څه وخت به زه دده ته سنکاره شوم ، نو چه زه به ده ته نژدے کیدم ، نو ده به په مخ د شلیدلی څادر پیڅکه واچوله ، یا به یئے مخ په بل لوری واړولو ، یا به یئے ریړئ پریښوده یو طرف ته به شـو چه زه یے اونه وینم ، نو په دے زه لازیات ده ته حیران

او متوجه شوم .

یوه ورځ دے د یو بوډا غریب فقیر کاک (خریدار) سره په خبرو و چه د روستو نه پرے زه را غلم او چه را تیریدم نو د ده خبره م په نظر شوه او په نوره لو یه ر دیره کښے د شپے نه زیات په مخ او ځلیدونکے سترګے م اولیدے سترګو یے زما په ذهن او زړه د یاد و چپه راوسته ، خوما دا سرے پورے او نه پیژندو ، ځکه چه زه یے اولیدم نو زر یے مخ بل خوا واړولو ، ولے چه ما د یادو په شیبه کښے په ذهن او زړه زور واچولو نو دا سړے راته هغه لیکوال او شاعر سنکاره شو چه د افغانستان د ادب او کلتور یو ستاغلے زلمے و . چه په حافظه م زور واچولو نو د افغانستان د لوئے او مشهور اخبار هیواد ، د افغانستان دا نقلابي حکومت د روزنامے حقیقت انقلاب ثور د ادارے یو نامتو غړے و . او چه د کابل مشاعرو کښے یه خپل کلام آورولو ته یا ښېدو نو دا نقلاب ملی جذباتو ، هنر ، فن او سنګلا ګلونه به یے شیندل .

خو بیا م زړه راته اووئیل چه نه دا هغه نه دے ، دا حالت دا غریبي ، دا یده ورځ ، دا در په در ، دا ریږئ دا ، دا ، دا ، دا هغه نه دے . هغه دلته څه کوی . هغه پیښور کښے ، حیات آباد کښے ، کالونئ کښے ، چرته د ملګرو یا نورو مها جرو سره وی . دا کوړی

په دے بازار کښے په دے حالت کښے څه کوی او که هغه وی نو بیا دا زما نه ځان ولے پټوی.

یوه ورځ چه زه دده دریځ سره تیریدم اوده را نه مخ واړولو، نو زه ورته اودریدم او ترهغه روان نه شوم چه دے رِم سم پیژندلے نه و. هو، دا هم هغه لیکوال او شاعر وچه ما ګڼړلو. او ددے نه پس یئے ما سره تګ را تګ شروع کړو او که دهٔ ډیر احتیاط کولو چه ماته خیلي مجبورئ تکلیف اوکړاوونه اونه سنایئ او هرځل چه راشی ما سره بس یو ادبی خبرے کوی اوبل دا تپوس کوی چه افغان کښے به کله امن راشی، ولے ماته روړو ددهٔ دخولے تریوه حده خبرے معلومے شوے.

دے په کابل کښے اوسیدو او چه کابل د کافر و روسیانو دوتلو او دهغو د ملګرو کمونستانو نه پس د مسلمان جنګیالیو دلاسه په ویتو لمبیدو او په هور سوزیدو، نو دهٔ لیدل کتل او اوریدل چه "مسلمان افغان" دلا سه د مسلمان افغان ژوند ناموس، سر، مال، کور، دُکان، ماشومان، بوډاګان، بازار، جماعت، لارے کوڅے او وَر در هرڅه تالا کیدل او تباه کیدل ولے دهٔ وئیل چه د مرګ د ویرے کور کلے نه پریږدم.

یوه ورځ دده په کور راکټ راغے، دده ورېره یئے مړه کړه

بله ورځ راکښته راغئ دده کورته یې مړ کړو ، دده خاندان او ګیرچاپیره خلک یې خوا بل خوا لاړل ، خو د دې د کور نه بل خوا تللو ته نه تیار یدو . جاده میوند باندې وار په واره حملې او شوې چه یکښې دده ورور او کانګې و څڅهم تالا تر غنه شو . کابل کښې دده د مجلس او تبلیغ څوک یا ته نه شول او که څوک وو هغه دده نه لرې لرې سیمو کښې او سیدل او د کولو او راکښو باران کښې هغوئ ته ور تلل یا د هغوئ نه خبر یدل ناممکن وو . ټوله ورځ او شپه یا د راکټو او بټو او ګولیو (مرمیو) شړ شور دې یا د خلکو ژړا فریاد دې او یا د مسلمانانو غازیانو د لاسه لوټ مار او بد ناموسئ . په دې لړ کښې به هرماښام دیوې سیمې او یلې سیمې د یو کور او بل کور درد ناکې او وخشتناکې خبرې خورېدې . په دې واقعاتو کښې یوه واقعه د کارته سه (دریمې کارتې) ده .

په یو کور کښې یو سنجُه خاوند دیوې پیغلې لور او یو لس کلن زوې سره او سیدل . چه کارته سه کښې په کورونو لوټمار او ناموس حملې شروع شوې ، نو یوه شپه دهغې علاقې د محافظه تولۍ مجاهد ، په دغه کور وراغلل ، سنجُه خاوند یې او ویشتل دکور ټول قیمتي سامان ، زیورات او نغدې یې د ځان سره یوړې او پیغله یې د ځان سره بوتله او هلک چه خدایې ساتلو نو چرته پټ بچ پاتې شو . سحر پیغله د ژوبې دسین په غاړه

په بد حال او بد احوال کښې دا سې مړه پرته وه، لکه چه د شپې لیونو سپو یې هډوکي خوړلي او یا یې شلولې وژلې وي.

ددې واقع حال دې شاعر ته دده یو انډیوال چه په دغو ورځو کښې یې ښاروالۍ ربلدیه) سره کار کولو او ویلو او دهٔ ته یې او ویل چه بس نور کابل کښې پاتې کیدل بدناموسي ده. ځکه اوس دهیچا مال حال او عزت ناموس محفوظ نه دی، ولې چه دغه کور به د مجاهدینو د تنظیم همکار هم و. چه دداسې خلکو ژوند او ناموس محفوظ پاتې کیدې نشي، نو نور خلک څه توقع کولې شي.

د شاعر کور خو دغریبۍ کور وو، خو ماندینه (ښځه) او ماشو مانې لونړه یې لرلې، نو دهو د په سا تنه د ناموس ویره غلبه شوه او دې سحر وختي یې محمود خان نه د یو بکس یوې بسترې سره موټر کښې سور شو. شپه یې طورخم ته راورسوله، سحر پېښور ته راغې. ولې پېښور ورته تور تیارهٔ و، ځکه چه دلته یې نه څوک پېژندل، نه یې د دمې ځایې. دیو مهاجر اشنا درک ورته معلوم و، هغه ته یې ځان اورسولو خو هغه خپله هم په تنګسیا کښې وخت تیرولو، نو دې په هغه دیره نه شو او د اکوړې په نوم او چاد را روان شو. دلته هم نه اسره، نه وسیله، نه در نه دمه. یو څو وارې زمونږ

حجرے ته راغے خودلته به زه نه ووم . نو بیته خوله به
واپس شو ، آخر چه تنګ شو نو دیو مهاجر نه یې به
قرض ریړئ واخستله او د بل مهاجر نه یې سبزی راوړه
او مازیګر به یې خرڅوله او دغه شان روزو د کرایې ورکولے
غونډے کور او په نیمه ګیډه ډوډئ خوړلو جوګه شو .
په دغه دوران کښې یې زما او دهر واقف سړی نه مخ په
دے پټولو چه په دا سے حال کښې یې ځان معرفی ریږندل،
کول مناسب نه ګنړل . نن بسبا هم په هغه ریړئ ګرځو لو
ورته ځان بد نه ښکاری ، ځکه چه یو خو ورسره بلد شو،
بل که د بال بچ سره یو وخت ډوډئ خوړلو او د نورو د
پیشسیدلو یا نړ و بے شودو او بے خوږ وچا یې خښتکلو او
یو تنګ ترشی کور کښې داوسیدلو جوګه شوے دے ، نو تیکاؤ
شوے دے ، که بستره د ازغوده خو دا تسلی یې شته چه په
ځاے خو پرته ده . که د افغانستان غم خوری ولے د ناموس
ویره یې نشته ، د سفر د سفر هسے کړاوونو ډیر ځوړ ولے
دے او دوطن زبون حالت یې هر وخت ډیر زهیروي . ولے
دوطن د مینے او خدمت جذبه یې تندو تیز ساتی . ځان د
افغانستان د هر ګټهرئ واقعاتو نه خبر ساتی او د شعر او
هنر میدان کښې تر اول زیات پوخ اوګرځیدلے دے . د ریړئ

د سبزۍ په تش د نامې آمدن او د بال ویح د کیدو نه هره ورځ
څه پټ ساتي او چه پیښور کښې د ده د ملګرو د مشاعرې د جمعې
ورځ راشي نو په هغه خان دیارانو ، سیالانو او انډیوالانو
مجلس ته رسوی او چه واپس راشي نو د اسې تازه او مست
وی چه لکه د کابل د دفترونو د چوکیو د هوا نه یې په غریبۍ
او مسافرۍ کښې زیاته د غیرت او قربانۍ وزمه په مغزو (مازغو)
لګیدلې وی . هو! سره زر چه هور ته وا چوښې نو هغه
پاسه شي او پښتون چه سختیو سره مخامخ شي نو جوهر یې
څرګند شي .

دا شاعر چه کابل کښې و ، نو دده غوندې زلمي به
پیرو نوموړي یا دیدل ، چه په کابل کښې امتحانونه راغلل او
راغلي دي ، نو اوس دوئ یو لوم ته خوشحالیږي او هغه
لوم دې (افغان - میرویس - احمد شاه)
چه هلته وو ، نو د پرېښوته او تکرارونه به یې کول اوس یو خبرو
او یو مجلس کوي : امن ، وحدت ، خپله خاوره خپل اختیار !
خدایږ دې اوکړي چه دا سې وي ، زه خو ددې شاعر د خبرو،
اشعارو او ارمانونو نه هډا محسوسوم . او دا د پرون د افتخار او
د ننه د مشکلاتو او د سبا د تقاضو زمزمه ده .

د کابل په اسمان سرې لمبې خورې دي — رانه سوزي که میوې دي که غنچې دي
د تاریخ هاتف په چیغه چیغه وایي — دې تیرو کښې د صبا مستې ورې دي
ستا د زلفو کمرکښې نور تم نه کوم م — ... کښې خور رنګ د میینې د سبلا دې

۴/۱۰/۹۴

# که اباسین راغلے نهٔ وے

زه دادے اوس د اعظم خان او زاهد خان دَتپوس یا پوښتنے (عیادت) نه خپلے کمرے ته راورسیدم. د دوئ هغه بله ورځ (یو دوه ورځے وړاندے) د لاهور په لاره موټر جنګیدلے و، نو دواړه زخمیان شوی دی. ولے زه نننئ خبره چه تاسو سره کول غواړم دا نه ده، هغه د افغانستان دیو افسر د ماند یینے (بنځے یا ټبر) ده چه ملاوینهٔ په علاقه کښے اولیدله. په ترخ کښے یئ خپل ماشوم و او دکوټے نه دیو پاکستانی افسر زوئے نیولے و، بازار ته دسودا دپاره راغلهٔ زه پوهه نه شوم چه دځان دپاره یئ څه اخیستل که هغه د پاکستانی افسر دکور دپاره، خو زما اندازه ده چه دځان دپاره نه وو، ځکه چه دهغ تیصمه م واوریده نو دهغے داسے سودا (سامان) دځان دپاره نه شوه آخیستے کومه چه دهغے سره په تیلئ کښے وه - بهرحال مخکښے واورئ.

زه چه دلوئے سړک نه په وړوکی سړک د افسرانو دبنګلے په لوری تاؤ شوم نو لاره کښے بازار راغے - مونږ موټر اودرؤلو چه دچانه

داعظم خان د ځایئ تپوس اوکړو په دے کښے څه گورم چه یوه کوچۍ (په افغانی روایتی لباس کښے زنانه ته دلته کوچۍ وائی) د موټر سره نزدے راغله اویوه شوم چه مونږ ته اودریده ، نوزما ورته خیال شو هغه روانه شوه خو دوه درے قدمَ پس بیا اودریده اوماته یے کتل چه زمونږ موټر روان شو نوما ورته کتل چه داهم روانه شوه خو بیا اودریده او لکه چه ترخ کښے ماشوم یے لاس ښنیه خوځول او ورات یے کوڅ لو نو دے هغه ته سیپږه ورکړه او ولاړه ده مونږ پسے گوری. ما چه دا حالت اولیدو نو دے زړۀ راته اوو ټیل چه هرڅوک چه ده خو تا پیژنی او ډیره په خُیر اوجذبه تاپسے گوری. نو مونږ موټر په شاشا واپس کړو اوهغ ته راورسیدو . زه د موټر نه ورکوز شوم او ورته مِ اووے لُورے ! زما ددے ویناسره هغه په ژړا شوه او په ژړا کښے یے دخولے نه اووتل "ختهک صیب" ! دلته زه هم جذباتی شوم ۔(او بیا داد ے ددے الفاظو دلیکلو په وخت کښے جذباتی یم ۔)

خیر دا پښتنې میر منې (افغانی مهاجره) د یو داسے افسر ټبر او د داسے پلار لور وه چه زه د واړه کورنۍ پیژنم اوماسره یے بے پرده تعلق و. ددے خاوند افسر و. د ظاهر خان په وخت کښے ډیر وړوکے ، د داؤ خان وخت کښے په ترقۍ کښے ، د تره کی صیب وخت کښے لوے افسر شو ، د امین وخت کښے معتبر افسر شو او

دکارمل وخت کښې بیا افسر و. د نجیب وخت کښې اوچت افسر شو. دغه شان پلار کښې یئ د شاهي دربار دوخت معتبر خلک وو او دهغې نه پس یې قدر زیاتیدو او دوئي خوشحال لیدل (نوموړی د اخبار ته نه ورکوم د لته یئ د ځان سره په دے تحریر کښې لیکلے پریږدم)

لنډه قیصه دا ده چه د پلار کوړني باندے یئ بم پریوتو څوک شهیدان شول، څوک زخمیان، یو ورور یئ پاتے شو هغه د روسیانو د وتلو نه پس د مسلمانانو وخت کښې قتل شو. خاوندیئ فیصله کړے وه چه مرګ او ژوند رم د خپلے خاوره دے، بیو یو هغه، یوه دا ماندینه، دوه ماشومان زامن او یو په غیږ کښې لور کابل کښې پاتے شول او مکروریان کښې اوسیدل. هلته یئ دواړه زامن په بم شهیدان شول، خو دوئي بیا هم کابل نه پریښوو. ولے هلته هم چا پرے ښنول او بدناموسي هم شروع شوه، نو دوئي مجبور شول، د یوے ماشومے لور سره پاکستان ته راغلل. چه څه کالي یئ خرڅ کړل په هغې پیښور ته راورسیدل او باقي یئ خرڅ کړل په هغې یئ څو ورځے د نورو افغانانو نه بیټ یر ده کښې دکمنا مئ حالت کښې اکبر پورے سره نژدے یوه بانډه کښې تیرے کړے او بیا چه پیسے ختم شوے نو د دوئي دیو وطني (پښتون افغان) چه د دوئي په شان مصیبتونه یئ لیدلي وو، سره مخامخ شول، هغه هم د دوئي په شان دکمنا مئ ژوند تیرولو او د ینډ ئډ په خوا کښې یوے آبادئ کښې یئ

مزدوری کوله - هغه د ځان سره دلته را وستل او دوئ ته يئ د
يو افسر سره خبرے اوکړے . هغه د سرکاری بنګلے خوا کښے په يو کوټه
کښے ديره کړل. خاوند ئې په ښار کښے خپلے لوټے او مزدوری کوی او
ښځه د بنګلے د بی بی سره خوږ شوے ده - د هغے سره په حياء کښے ګزاره
کوی . ښځے ماته اووئيل چه دا دلته ډير ښه خلک دی او مونږ
سره ډيره ښه ګزاره کوی . په ژبه سره نه يو هيږو ، خو يو بل
سره وخت ډير ښه تيروو . ما زړه کښے اووئيل چه بے شک چه دوئ
به هم ډير ښه خلک وی خو چه ستاسو په درنو هلوونو او درونډ
خوئ پوهه شوی وی ، نو دوئ زړه به هم نرم شوے وی .
ما ترے تپوس اوکړو چه دے خلکو ته تاسو ځان ښائيلے دے چه
تاسو هم د دغه شان بنګلو او افسرئ نه دربدر شوی يئ .
ښځے اسويلے اوکړو او وويئ "بابا! نه چه خدائے را باندے دا ورځ
راوستی ده نو اوس هيڅ نه يو، بس د افغان مهاجر" يو .
هيڅ نه يادوو ، هرڅه موهير دی ، په ځان مو يړ ده اچولے
ده ، څوک چه راته څه وائی هغه يو - د ژوند ورځے ښے تيروو
خدائے دے وطن ته خير کړی ، چه خير شی بيا به ګورو چه
قسمت کښے مو نور څه ليکلی دی ،، ما ورته اووئيل د وطن او
کور کلی نه خبريږئ ؟ نو بس يو سوړ اسويلے يئ اوکړو .
ما بل تپوس اوکړو " کلی وطن کښے دا معلومه ده چه تاسو دلته يئ؟"

بیا یې اسویلے وکړو . دلته مو د وطن ډیر ملګري دي د هغوی سره مو رابطه شته ؟ بیا یې اسویلے اوکړو .

ما ورته اووئیل لورے ! تنګوم دِ نه ، خو حال دِ معلوموم . د هغې دنړے رنړے او ښکے په مخ راروانے شوے « بابا ! څه حال مومعلوموئے ؟ دا څه حال دے ، بس پړده مو په ځان اچولے ده هرڅه مو هیر دی ، خدایځ دِ وطن ته خیر کړي »

ماسے زړه ٭ کښې او وئیل چه نو ریځ په زخمونو مالګه نه دوړوم او چه روانیدم ترے نو ورته اووے چه هغه (خاوندیے) راشی نو ورته اووایه چه خټک صیب مِ لیدلے و . هغه ته مِ اووئیل چه زه اسلام آباد کښې په ایم این اے هاسټل کښې ۳۸ نمبر کمره کښې اوسم ، هلته ماته راشی . او خپله پته مِ یه کاغذ لیکلې ورکړه . هغې جواب راکړو « نه بابا ! زه داسے نشم کولے . هغه به خفه شی » ما ووئیل ولے به خفه شی » هغې ووئیل « هغه چه څوک پیژنی دَ هغه نه ځان پټوی . چه خبر شی چې زه ( داسځه ) دِ لیدلے یم او دهغه نه خبر شوے یئے نو به دے به ډیر تکلیف ورته اورسی » ما جواب ورکړو : داسے نه ده ، هغه که خفه شی هم ته یئے خبر کړه ، زما لیدو ته به راشی ، ځکه چه اوس خو زه خبر شوم ، نو بل علاج خو یئے نشته . » هغې اووئیل « نه بابا ! هغه خفه کیږی »

ما ووئيل بنه ده نو که تاهغه ته او نه وئيل او هغه ماته رانغلو نو زه به ورپسے هرڅنگه چه وی دلته راشم او خامخا به هغه وینم . هغے چه دا واوریدل نو یو لوئے اسویلے یئے اوکړو او خولے نه یئے اوختل « وئ زما خدایه هغه به څه وائی »

چه زه موټر کښے کښیناستم ، موټر هم روان شو هغه هم روانه شوه او د هغے پښے په نظر راغلے نو اوم لیدله چه په دے یخ ساړه کښے یئے پړے جرابو پښو شلید لی چپل وو . دلته ماته د دوی د کابل دکور د ننه د دروازے په خوله کښے د پیزار دول دول بوټانو وغیره قطار رایاد شو ، نو د پښو نه تر سر م یوه لمبه اوکرځیده او دخان سره م اووئیل :

خدایه د اکو مه سیلئ راغله
چه ریژوی راته د مینے زیږ گلونه
ے
خاوند ، ما خو دا سے نه وے
چه به فقیر شم څوک به خیر نه راکوینه

٢٠/٢/ ٩٥ * * *

# مِلّی ننګ

هوبهو چې موټر د اسلام آباد په لوی سړک د سیو اشارو شاته موټرو نو کښې او دریدلو نو زمونږ خواته یو موټر سره یو پاکستانی مور زوی ولاړ دی او موټر کښې یوه خارجۍ ښځه یو ماشومه لور او یو ماشوم زوی ناست دی.

هغه مور او زوی داسې دی چې مور زړه هم ده او پرنده هم یو لاس یې د ماشوم زوی په اوږه ایښې دی، بل لاس کښې یې لکړه ده په هغې یې ځان ټینګ او دریدلی دی او په خوله د موټر والې ښځې نه خیرغواړي. او ماشوم یو لاس په اوږه د مور لاس ته مه د ورکړی دی او بل لاس هغه هم د خیر دپاره موټر ته نیولی دی.

موټر کښې ښځې په شیشه ننګ لاس ایښې دی، خاندی یو لس کلنه لور یې ددې خیر مار مور زوی عکس آخلی او د هغې نه کشر ماشوم هلک دغه مور زوی ته بدرد وایي. په ښیره یې نفرت دی په خوله غصه ده او په لاسو داسې اشاره کوی چې ورکې شئ د مخه

موبناه شئ »، او چه موږ روانیدو نو هلک د موټر نه لاس راېهر کړو او د جُوس (شربت) په خالي ډبې (قوطئ) یې دا پاکستاني ماشوم په مخ اوویشتو.

زما په دے مورزوي ډېر اوسوځیدو، نو چه زموږ موټر هم رو رو روانیدو نو ما دوئ ته په افسوس افسوس کتل، څهٔ کورم چه د سړک دغاړے نه یو افغانی خورلنړه (خورلنه، خور ...) ددے خیرمار ماشوم هومره لورسره رامخکښې شوه، هغوئ هم دا منظره ترنظره شوے ده، دامور اولور یې ځان لورې ته رابنکلي. دلور سره لاس کښې نیمه کازره وه چه هغې خوړله هغه یې دے ماشوم ته ورکړه او د مور یو لاس کښې د ګندہ نل قوده (یو موټے ګندنل) او بل لاس یې جولئ ته یوړو څه شے یې ړندے خیر مارے ته ورکړو.

زه چه د خارجي مور زوي لور د خندا، کرکے او رټلو او دا فغاني غیرتمنې مسافرے او د هغې خوارے لُور د یو پاکستانی خیر مار مور زوي سره سلوک ته فکر واخستم، نو د مشر قی پاکستان د ورځو یو واقعه را یاده شوه.

زه د ډاکے ښار په مُغل بازار کښې د مردان دملګرې علي حیدر بهادر سره د هغه د تماکو په منډائي کښې ناست وم، نو بهاری مزدور (د بهار صوبے اوسیدونکے) راغے او زموږ دکټ سره په مزکه کښیناستو. علي حیدر ورنه په بنګالئ کښې تپوس اوکړو چه څه والئ

او ولے د کار پرېښو او موږ ته راغلے . زه خو دمیلمه سره ناست
یم خبرے کوم ، ته چه څه وائے ورشه منشی جی ته او وایه .
هغه ورته دواړه لاس جوړه کړل او په عاجزئ کښې یے ورته
اووے چه زه داسے خبره کوم چه تا هم خبروم او دا میلمه هم .
علی حیدر بهادر ما ته د مزدور سوال جواب واورولو ، نو زما
د خبرے اوریدو سره تلوسه پیدا شوه او بهادر ته م اووے
چه حال ترے واخله .

بهاری مزدور اووئیل چه دے وطن ته به رخصتئ تللے و ،
واپس به ترین (ځور گاډی) کښې راتلو ، یوه ډبه کښې ناست و
په ډبه ډیره ډکه وه . په هغے کښې یو خان (پښتون) هم ناست و
چه ترین به یو ټیشن اودریدو ، نو یوه بوډئ ضعیفه هندوه
(هندو سنځه) راوختله . بے چاره دیوډا والی او ضعف نه ښوله
رپیده خو په ډبه کښې د ناستے ځاے نه و ، نو په بد حال او تکلیف
ولاړه وه ، چه د خان ورته پام شو ، نو هغه د خپله ځایه پاڅیدو
او هغه بوډئ یے په خپل ځائے کښینوله . کا ډے چه په بل ټیشن
راوختو نو یو کبرو سردار (پهلوان غونډے سکھ) راوختو ،
هغه چه اوکتل چه د ناستے ځاے نشته ، نو دا بوډئ یے دلاسه
اونیوله ، راکوزه یے کړه . او کوزه یے کښینوله او په هغه ځاے
سردار کښیناستو . چه خان دا حال اولید لو ، نو سردار ته یے اووے

چه دا خو زما ځای و، ما په تیر تیښتن په دے بوډۍ رحم اوکړو، دا م کښینوله او تا را کوزه کړه، دا ولے؟ سردار ورته په غُصه کښے اووے " څه، څه! دا پېښور، کابل نه دے، دا بهار بنګال دے." خان ورته په ډیر نرمۍ سره اووے " سردار صیب دے کښے د پېښور، کابل او بیا بنګال سوال نشته. دا خو بوډۍ ښځه ده، هندوه، یا به بهارۍ وی یا بنګالۍ، ما خو دد ے حالت ته اوکتل، نو زړه م پرے اوسو او خپل ځاے م ورکړو" په دے د سردار غُصه نوره هم زیاته شوه او خان ته ئے اووئیل " ډیرے خبرے مه کوه، ته که پټهان یے نو زه هم خان سته سکه وا یم." خان ټولے ډبے ته مخ واړولو او وے وئیل" دا سړے پوهه کړی، تاسو دیو وطن او یوے ژبے خلق یئ. ز ه خو ستا سو او دده په مور نحوندے بوډۍ رحم کوم او دے ما باندے غُصے کوی." سردار په دے خبره نور هم ګرم شو او خان ته ئے اووے " چپ شه خبرے مه کوه" او ډکه ئے ورکړه په بوډۍ ئے اوغورځولو. د ډبے خلکو دا خبرے اوریدے، تماشه ئے کوله او خندل ئے. پټهان غریب را پاڅیدو خپلے خیرنے کپړے ئے څنډلے او سردار ته ئے کتل. سردار غُصے ا خستے وو او خان صبر کولو خو چه سردار دخولے نه اوختل" اوس در ته پټهانی، متهانی په ... در منډم " په دے خان را ببر شو یو هیبتناک-

"الله اکبر" یې اووې ، بربړېږي اوکړل ، د بلې نه یې چاپېره را واښسته په سردار ورانغې او هغه یې دالسې اووهلو چه هغه ځاې یې ایوته اوغورځولو . په دې یه کښې الغاؤ تلغاؤ جوړ شو او ټول خلک یو طرف ته شول . پټان زنځیر راښکو او د ګاډې نه کوز شو او په یوه تېزه منډه او تښتېدو . د ګاډې نه ور پسې یو پولیس څه حرکت اوکړو خو چه هغه وړته د وینې نه سره چاپېره د لرې نه اوخوځوله نو هیڅ ور پسې جرأت او نکړې شو . په بل ټیشن پولیس والؤ سردار د دوی د ډبې نه پورته کړو ، دوئي یوه ـ نه شو چه هغه مړ وو که بې هوشه وو . هغه پولیس یو ړو ، بوړئ یې خپل هغه ځاې کښېنا سته کوم ځاې چه پټان خان ورکړې و او خان لاړو هره مخه چه یې اوکړه او قسمت چه ورسره هرڅه کړي وه ، خو لاړو .

یوه واقعه د کراچئ رایاده شوه . د سبزي منډا ئ سرې نزدې یو بوډا فقیر موټر اووهلو ، او په وینو لړلے په سړک پرېوتو . هغه قاتل موټر او تښتېد . نور موټر وال او لارئ را ځي ، د سړي تماشه کوي او تیرېږي . ګنړ خلق ترے چاپېره اودرېدل ، څوک څه وایي او څوک څه ، خو تشے خبرے کوي ، د سړي غم نه کوي . په دے کښې یو سپین موټر راغلو او اودرېدو ، یو ښکلے معتبر غوندے سړے د یو څو ملګرو سره

ورکوز شو ، د سړی نبض اوسترګې یې اوکتلې او ووې وئیل
«هلک ژوندے دے ، را دیخوا کړه دا موټر چه هسپتال ته
یې یوسو» هغه ملګری ورته اووئیل «راځه سړیه د پیښې
(عدالت کښې دحاضرئ) وخت شو ، وکیل به انتظار کوي. به
دے لانجه ځان مه اخته کوه . ډاکټر ته به ورځے ، پولیس
به دِ تنګوي ، عدالت ته به دِ بوزي او وختونه به دِ خرابوي
او د کار نه به دِ اوباسي. راځه ، راځه زر کوه چه ځو.»
معتبر سړی ورته اووے «خوارشے ، سړے مری ، څوک یې
نشته چه هسپتال ته یې اورسوي ، را دیخوا کړه موټر، پیښې
میشې به بیا هم اوشي ، خو که داغریب مړشو ، نو بیا نه راځي»
هغه بل سړے یخ ولاړ دے ، دهٔ ته هم کوری او زخمی ته
هم او موټر نه راولی . نو دا معتبر سړے زخمی ته ورلاندے
وتو اوغیره کښې یې اوچت کړو ، خپلې استری کړے جامے او
ډولی واسکټ یې په وینو او لړلو او زخمی نقیر یې هسپتال ته
روان کړو . دا سړے دسوات یوپیښتون دولت خان و چه
یو انسان یې په داسے قابل رحم حالت کښې اولیدو ، نو خپل کار ،
عدالت کښې حاضری او ځان ترے هیر شو. خپلې جامے یې دنقیر
په وینو دکاره اوا یسته ، خو فقیر یې خپله غیږ کښې پورته کړو
په دے یا دونو او فکرونو کښې ډوب خپل هاسټل او کوټے ته

را اورسیدم او کښیناستم . دا هرڅه لیکم او ورسره سوچ کوم چه دا یه لویئ سړک هغه خارجی سنځه چه ځان دنیا کښې مهذب بولی او مونږ جاهلان او بے تربیته گنړی . هغه یو بوډئ خیرمارے پوډے خاندی او چه دهغې زوے ماشوم خیر مار په حقارت سره په ډبلی او لی او هلته یو حالاتو ځپلی غریبه مسافره افغانئ خور لنړه او دهغې ماشومه لور په هغوئې خفه کیږی او رحم پرے کوئ ، چه څه لری هغه دخپلې خولې نه شوکوی اوخیر مار ماشوم ته یئ ورکوي.

دبهار بنګال دریل ډکه ډبه کښې هیڅوک دهغوئې وطنی مور بوډئ ته ځائ نه ورکوی، یو مسافر افغان خپل ځائے هغې ته ورکوی اوبیا چه یو سردار په هغې زیاتے کوی ، هغه سره جنګ کوی. دے نور خلکو کښې او دے افغان کښې دافرق په څه دے؟ اودولت خان سواتی او کراچئ والو کښې دڅه فرق و . چه هغوی دزخمی فقیر تماشه کوله او ده خپل کار پریښبو او دهغه غم یئ شروع کړو .

دډیر سوچ نه پس په دے نتیجه اورسیدم چه دا فرق دسړیتوب او افغانی ننګ دے . افغانی ننګ چه ډیر اړخونه لری ،خو بنیادی نکته یئ دا ده چه دسړیتوب داسے معیارونه لری ، چې هرچنګه هرچیرته او هرډول چه وی ، خو چه دده معیار حرکت کښې راشی

نو دده خان او جهان هیر شی او د دغه معیار ساتنه کوی.
که په سر وی که په مال، د دے معیارونو د پاره علامه اقبال
عشق یا خودی نوم غوره کړے دے او ماته ننګ ښکاری،
ننګ - ننګ - ننګ .

ما دو مره لیکلی وو چه یوسیاسی ملګری را بانده د روستو
شانه غږ اوکړو، "دا په څه کښے داسے غرق یې، چه زه در ته
د ډیر وخته د دروازے په خوله کښے ولاړیم، ته لیکل کوے
او ماته دِ پام نه شو."

ما ملګری ته او وئیل "هر کله راشه! راشه کښینه، زه په
افغانی ننګ څه لیکم، واوره! تا ته به هم خوند در کړی."
هغه جواب راکړو "افغانی ننګ"، کوم ننګ؟ د چا ننګ؟
او چرته دے ننګ؟ " د خوشحال بابا دِ نه دی اوریدلی
چه:

دبے ننګه پښتنو دغمه ما لو یه پرینبوه او نیوله کمه ما

او باچا خان به نه وئیل چه " پښتون هر څه ته تینګ دے، خو
دوه پیسو ته نه دے تینګ"

ما ورته او خندل او ورته مِ اووئیل چه ته برے یو هوشوے
نه یے. خوشحال بابا او باچا خان بابا هم ننګ ته اپیل کوی، هغوئ چه
د پښتنو د تور د خویونو او عادتونو نه تنګ او مأیوس شو، نو د

هغوئ ننګ را بیدار ولو دپاره یئ ورته په دے وینا ستنے ورکول غوښتل ، پیغوریئ ورکولو . پیغور د ننګ د را بیدارولو دپاره لویه حربه ده . هر څه به لاړ شی خو ننګ نه ځی ننګ په وینه کښې دے چه د ننګیالو اوسنو او لرغونو پلرونو نیکونو وینه رګونو کښې شته ، نو ورسره ننګ شته . چیه د هلمند او اباسین غور زنګ شته ، نو ننګ شته . چه د کسی غرهٔ په څوکو د سپینے واورے د فخر پګړئ شته او د خیبر د غرونو د لمنو په آبشارونو کښې د ملی ژوند سحرناکے زمزمے شته ، نو ننګ شته . چه د هیواد ایلبندونه او ورشوګانے د زمانو زمانوسره وینه هر کال په شنو او رنګینو لمنو کښې را برسیره کړی او د وطن شمال یے د ځوانانو په بریتونو کښې او جونه یے په څنګو کښې ګډوی او هغه ننګ ننګ نعرے وهی ، ننګ و ، شته او وی به ، ورک نه دے پټ نه دے .

زما ملګری په دے جواب اوخاندل او- وے وئیل :
«منم چه ننګ و ، ننګ شته او ننګ به وی . د هیواد طبیعت (فطرت) د ښکلو ننداره په هر منظر کښې او د وطن د جونو او زلمو د رګونو سوچه وینے په هر څاڅکی کښې یه وی او خدائے دِ یئ لری ، خو دا ننګ په مسلی کیبری

کله؟ ته وائے پیغور یئے راپاروله شي . وله نه وایم چه کوم پیغور؟ آیا د دے نه لوے پیغور کیدے شي - دا کوم پیغور چه ورته ننن راولاړ دے، پیغور نه پیغورونه !!

# د کابل ډاکټر

زه د واه آر ډ نینس فیکټرۍ قبلې غاړې ته د لویې شاهي سړک په خوا کښې په یو کلي کښې میلمه وم. چې زه په کوم کټ کښې ناست وم نو د هغې وړاندې د دې دېرې (حجرې) دیوال و. دیوال ډېر اوچت نه و - نو باهر یوه دروازه ښکاریده، چې زما نظر په هغه دروازه او لګیدو نو د هغې د پاسه وړه غونډې لوحه (بورډ) لګیدلې وه. او په هغې لیک وو "دوکتور ګلاب" ما چې دا ولوستل نو ذهن ته مې داخبره راغله چې دا د "دوکتور" اصطلاح خو د افغانستان ده، نو دا ګلاب ضرور افغانې دې. ماسره کور به ملک صیب ناست و، د هغه نه مې تپوس او کړو، دا ګلاب کور د چا دے؟ هغه زر جواب راکړو "دا دیو کابلی ډاکټر دے"، او د دے سره د ډاکټر په صفتونو لګیا شو، خان صاحب دا ډاکټر نه دے، په خوئې خصلت فرښته ده او په دارو لقمان حکیم دے، په خوله کښې شات (شهد) دي او په لاسو

کښې یې شفا ده. خدائے په مونږ فضل کړے دے، د ډاکټر
د مُمتازئ نه یې خلاص کړی یو. چه دے را غلے دے، نو نه
دوا دارو ته واه ته څوک ځی، نه ټیکسلا ته، نه پنډۍ ته
بلکه اوس خوږد هغه ځایونو مریضان دلته دے ډاکټر ته
راځی. ما کوربه نه تپوس اوکړو " ملک صیب دا ډاکټر
چرته وو؟ او دلته څنګه راغے؟" کوربه په جواب کښې اووئیل
"خان صاحب! زه پنډۍ ته د زوئې ملاقات ته روان وم،
ماښام ناوخته چه زمونږ ویګن د پیرو ولائی اډے ته اورسیدو
نو دلته زما په زړه حمله راغله او دے زړه م دړدو نه
اوښتو پو نه شروع کړل. زه په ذیر هیبت د دے کشرزوئې
سره ویګن نه کوز شوم او هلته په اډه کښې کټ پروت و
په هغې کښې اوغزیدم. مرګ را ته مخامخ ولاړ و او وایم
چه دغه دے لاړم او دغه دے لاړم. فریادونه م کول او چغې
م ایستې. په دے وخت کښې د خدائے فضل و، زما نیت نه وه
پوره، دا ډاکټر هلته چرته ولاړ وو، چه زما حالت یې اولید و
نو زر راغے او ما ته یې یو ګلاس اوبو سره څه دارو راکړل
چه هغه زما نس ته لاړل، نو رو رو م نس هوار شو، د
زړه دردزا م کمه شوه او لږ ساعت پس جوړ شوم، ګنی مړ ؤ
د دے مسافر هم څه ځاے ځایګے نه و او په ما یې دومره احسان

وکړو ، نوما په ډېرو منښتو نو رضاکړو او ځان سره م دلته راوستو ډکان م ورته جوړ کړو ، برکت او قسمت د ده خپل دے ، لږ وروستو کښې مشهور شو او دلته پاتے شو . »

ډکور به په خبرو زما تلوسه زیاته شوه چه زر دا ډاکټر کلاب ووینم چه دا څوک دے ؟ نو کور به ته م اووے چه زه د ډاکټر لیدل غواړم . هغه جواب راکړ چه ته کښینه زه ورپسے سړے لیږم اوس به راشی او ستا به ډیر خوښ شی ، ډیر خوږ سړے دے . ما ورته اووئیل « نه زه خپله ورځم او دے سره ورپاځیدم ، کور به هم راسره روان شو . هم هلته نزدے یو څو ډکانونه وو ، په هغې کښې د ډاکټر شفاخانه هم وه . ډاکټر د لس دولسو زرو وړو ، نارینه او زنانه مریضانو منځ کښې ناست دے ، په اشارو یو بو ډا مریض ته د دوا د استعمال چل ښائي . چه ما اولیدو ، نو سره ددے چه زیره یے پریښی وه او لام لباس یے بدل وو خوما دیوزے او سترګو نه اوپیژندو چه دا خو د کابل د څلور صد بستر متخصص ( سپیشلسټ ) ډاکټر کرنیل . . . دے او دپیژندو سره م پرے آواز اوکړو ، وه کرنیل صیب ! دا ته ؟ هغه سترګے راپورته کړے ، یوه لحظه یے ماته اوکتل او ووے وئیل « هو ، دا زه » او راپاځیدو ، جوړ تازه موآوکړل او یو بل ته سره غاړه وتو .

دے وخت کښې ما ته هغه منظرے را مخکښې شوے چه دے کرنیل صاحب ته به وزیران او رئیسان محتاج وو، خارجی معتبرو به په خپلو ډاکټرانو علاج نه کولو په دۀ به یې کولو چه د ملک رئیس ته به تکلیف پیدا شو نو دے به یې بللو او بوځل دا ختر په ورځ چه ارګ کښې د ټول افغانستان حکمرانان (وزیران، جرنیلان او معتبران) ناست وو او داکټر را مخامخ شو، نو ټولو دده د مهارت او خدمت صفتونه کول اونن دادے په یوه خیرنه کرسئ ناست دے، څوک ورته دوه روپئ لاس کښې کیږدی، څوک پنځه او څوک لس او دے ورته تشکر اووائی او بیا یې په پردئ ژبه د دوا په استعمال او پرهیز پوهیوی.

ډاکټر چه د مریضانو نه فارغ شو، ماسره دیرے ته راغے او ډیر ساعت یې ماسره خبرے کولے. ما تیر وختونه او زاړه ملګری رایادول، ولے ډاکټرخبره اخوا دیخوا کوله، د تیر وخت یادولو په لور نه راتلو او چه ما بیا بیا دده را تلو تپوس نه اوکړل نو هیڅ جواب ته تیار نه شو. ولے چه ما ورته اووئیل داکټر صیب ته ولے خبره اخوا دیخوا کوے، په دے حالاتو کښې خو ستاسو څه کمزوری نشته، دا مصیبت خو خدا ے راوستے دے، نو هر څنګه چه دے، نو دیویل نه به تپوس

خو کوو، نو په دے خبره هغه لږ ببر غونډے شو او
ووے وئیل « په زخمونو به مالګے نه دوړوو، خفه کیږه مه
د پښتنو تپوس دا سے لوی؟»او بیا مُسکے شو او وے وئیل
تپوس - خفه نه شے، ته هم دېر دی ملک صاحب په کټ کښے
ناست یے اوزه هم د هغه ملک صاحب په کټ کښے ناست یم اوبیا
دبل نه تپوس کوو- ته اووایه د پښتنو تپوس دا سے وی؟»
ماسره د ډاکټر صیب د دے خبرے جواب نه و، نو غلے شوم
او فکرونو واخستم، نو ډاکټر راته په اوږه لاس کینښود او وے
وئیل « حال؟ حال پو هیږے؟ کوم حال؟ دچا حال؟ خفه کیږه
مه، د هغه وزیر اکبر خان میږے حال چه ته پکښے د « پښتنی مشر»
په حیث او سیدے او نن یے دا حال دے چه د پښتنو حیا
او ناموس په کښے محفوظ نه دے . د هغه کور حال درته اووایم
چه ستا او زما او د پښتنو بابا باچا خان به پکښے د انګورو د
غنچو او د ګلونو د وږمو لاندے ناست و، دا احمد شاه بابا
د هیواد غم به یے کولو او چه په اخر ځل ترے را روانیدو یوه
جوړه د خړے خامتا جامے، یو څادر او یوه د کېږے توپئ یے په
الماریئ کښے بند کړه او چا بیئ یے خیر بخش مری ته ورکړی چه
دا امانت به ته ساتے او نن هغه کور په بمونو داسے والوتو چه
اوس خالی میدان دے او د پښتنو د بابا توپئ، څادر او جامے یا به

هور کښې او سوځیدے یا بوټه بوټه، ریشه ریشه دکوز په خاورو او ایرو کښې لغړیږی. که د هغه کارته سره حال درته اووایم چه تا سره په بنګله کښې هرماښام دافغانانو سیاستدانانو، وزیرانو او جرنیلانو میلے جوړیدے او نن یځ دا حال ووچه په هرکور کښے مور د لور د پاسه، پلار د زوے دپاسه، ماشوم د مشر د پاسه مړه او حلال پراته وو او د جنازے یځ څوک نه وو، که د هغه میکرویان حال درته اووایم چه مونږ او تاسو به پکښے د ټول هیواد د آبادئ، خوشحالئ، سیالئ او عزت صلاح کانے کولے او نن د هغے د بام چتانه پیغلے ځان راغورځوی او ځان وژنی چه حیا او ناموس وساتی که د هغه کارته ماموران حال درته اووایم چه مونږ به د جمعے په ورځ هلته داستاد کره جمع کوله او څه لوئے لوئے منصوبے به موجوړولے اونن هلته د نارینه وو په لاسونو او سرونو میخونه وهلےشول او د زنانه وو سینے پریکیدے، که د خیل چار صد بستر حال درته اووایم چه هم د مریضانو دپاره باغ وو او هم شفا خانه او هم دخوند او رنګ ځاے، نن هلته په برموسورئ شوے سینے، په چړو مسخ شوے څهرے، د هور په سرو سیخونو رنډے شوے ستر ګے، تالاشوے عزت، لوټ شوے ناموس راځی، یا مړی دی یاد مړو غوښے دی یا وینے دی " ډاکټر چه تر دے په کر موجذ باتو او زخمی غیرت

خبرے اوکړے ، نوما نور داوزید و تاب او نلرلو او ورته م
او وئیل " ډاکټر صیب ! بس ، بس - نور م مه ژړوه -"
ډاکټرصیب نور هم راوپاریدو او په یو ه سا دا سے لګیا شو :
" پرین د ه چه په ژړا عادت شوے نبه او ژاړی ، وینے خو لکه
دلسینتو او بهیدلے خوچه او نیکے هم لکه دسیندونو روانے شی ،
مونږ اوده یو ، اوده لاسنه دی مونږ مړه یو ، مړی په هیڅ نه پاڅی
خوکه دا ژوندی مړی چه رګونو کښے د ژوندو نیکونو وینه لری
کاش چه په دے راپاڅي " ما بیا ډاکټر صاحب ته او وئیل ، بس ،
بس ." اودهغه د توجه بدلولو دپاره ما دهغه نه تپوس اوکړو
" ډاکټر صاحب دا ملک ږ څنګه د مرګ نه او ساتلو؟"
ډاکټر صاحب آخر ډاکټر و نو د جذباتو په طوفان کښے
موسکے غوندے شو او وے وئیل " نبه ده ، چه نور دحال
تپوس نه کوے او توجه م بدلول غواړے ، نوپیره نبه ده ،
اوس دا بله واوره : قیصه دا سے وه چه په ملک صیب دزړه
حمله نه وه راغلے ، د معدے بخار (ګیس) ئے زیات شوے و ،
چه ما اولید و چه په کټ کښے پروت دے ، چغے اوباسی او په
معده لاس وهی او وائي چه مړ شوم ، نو پوه شوم چه درد
ئے په معده کښے دے . تاته معلومه ده چه زه خو د زړه د مرضونو
متخصص (سپیشلسټ) یم ، نو ما ئے زر زر نبض اوکتو ، په زړه

م ورته غوږ کېښو ، په لاس م یې د زړه حرکات معلوم کړل
زړه یې بیخي سم روان و ، نو زر ورا غلم د مخامخ دوافروش
نه م یو څو د سوډ امنټ ګولۍ را وآخستې او دیو ګلاس
اوبو سره م ده ته ورکړې ، په هغې دے ښه شو ، ولے دے
اوس هم وایئ چه په ده د زړه حمله راغلې وه" ددے نه پس
ما تپوس اوکړو " ډاکټر صاحب دلته څنګه محسوسوے ؟ "
ډاکټر صاحب راته پوره بیان داسے شروع کړ ، مختصرحال
یے داسے دے :

د چارصد بستر هسپتال د حملے نه پس ډاکټر صاحب افغانستان
کښې نه شو پاتے کیدے ، نو دیوے ماندینے (ښځې) او یو ماشوم
زو یے سره د کابل نه پټ راووتو ، څه پیاده ، څه سورلۍ ، څه
څه ، څه څه ، آخر کرُم ته یے ځان راورسولو . دلته په سده
کښے د ده د ماندینے خیلخانه اوسیده ، هغوئ سره راغے او
دهلته نه یے خپلو عزیزانو سره په استرلیاکښے رابطه اوکړه ،
هغوئ ورته د استرلیا دپاره ویزا راولیږله ، نو ډاکټر صیب
اولاد په سده کښے پریښو او دویزے پاسپورټ دپاره اسلام آباد
ته راروان شو . د خرڅ دپاره یے د خپلے ښځے ګانړے (زیورات)
اوخپله کړې خرڅ کړل ، د ټکټ وغیره دپاره یے پیسے د ځان سره
راواخستے ، چه اټک ته راورسیدو ، نو دلته پولیس اونیولو

خو دهٔ په دوه سوه روپئ ترے ځان خلاص کړو. ډاکټر
صیب بنګلے سفید پوش سړے و، نو دچرته نه . چپا
ګنډکټ (کِسه بړ) په نظر کښے اخیستے دے او دو یګن په رش
کښے یئ ترے نه جیب وهلے دے، چه دے د ډینډئ په ډیربرای
اډه کښے کوز شوے دے او جیب کښے یئ لاس وهلے دے،
ټول رقم او کاغذات ترے چا ایستی وو. ډاکټرصاحب تش
لاس، تش جیب حیران دریان ولاړ دے په دے کښے ورته د موټر اسو
د اډے مشر ځدرانړ خیال شوے دے. هغه خیال کړے دے
چه دا مهاجر ولے داسے ولاړ دے، نو راغلے دے او تپوس
یئ ترے کړے دے. ډاکټر ورته ټول حال ویلے دے، نو
ځدرانړ ورته تسلی ورکړے ده، چی هیڅ فکر مه کوه. دلته
کښے اډه کښے شپه تیروه او هوښیار سړے معلومیږے، د
شپے د بسونو او یګنونو څوکیداری کوه چه څوک بم کښے
نه ږدی، پنځوس روپئ ورخ به اخلے، په هغے ګزاره کوه
او د اسټرلیا سفارتخانے ته ورشه، ټول حال ورته ووایه که
هغوی درسره څه اوکړی بیا هغه شان کوه، ګنی چه څو مره
موده د لته یئ پنځوس روپئ اخله چه څه وخت دِ کار
اوشی یا او نه شی، نو ستا خوښه چه چرته ځے نو ځه.
ډاکټر صیب د دے نه پس شپه اډه کښے تیروله او دورځے به

دا سټر لیا سفار تخانې ته ورتلو . هغه سفارتخانې یوه میاشت
اوکړوُلو ، ولې د ده کار اونه شو ، ځکه چه د ده سره څه
سند نه وو او هغه چه وو هغه ګنډ کپ وهلې وو . اخر
دے د سفارتخانې نه مأیوس شو ، نو د واپس سدے ته تللو
اراده یې کړے وه ، په دے کښې پرے ملک صیب پیښ شو او
هغه ځان سره راوستو .

ډاکټر صیب ته ځنې دُنیا تورتم شوے وه ، چه د لته یې کار
روان شو ، نو فیصله یې اوکړه چه ترڅو په افغانستان کښې امن
نه دے راغلے یا واپس نګ نشي کیدے نو هم د لته د ملک صیب
سره به وی . هم دغه وه چه لږ ورځو کښې یې پیسے پیدا کړے نو
سدے ته لاړ ، بال بچ یې هم دلته راوستو . اوس ډاکټر صیب
د بال بچ سره اوسی او ښې پیسے ګټی . ملک صیب وائي چه
د دے نه به یې هم زیاتے پیدا کړلے ، خو دے د غریبانانو نه
فیس نه اخلی او چه د چا نه اخلی نو چا ته دا نه وائي چه دومره
راکړه ، خو چه چا څومره ورکړے دے یې په شکریه قبولے کړی .

کوربه (ملک صیب) زمونږ خبرے ډیرے په غور اوریدے
چه پوهه شو چه خبرے خلاصے شوے ، نو ما ته یې مخ راواړولو
او را ته یې اوویل " خان صاحب ! ته زما او د ډاکټر ترمنځه
فیصله اوکړه ! " ما ورنه تپوس اوکړو " څه فیصله ؟ "

هغه جواب راکړو "مونږ د دے کلی او علاقې مشرانو فیصله کړے ده چه دا ډاکټر صیب واپس افغانستان ته نه پریږدو، دلته ورته هسپتال جوړوو، سنه بنګله جوړوو او دومره سنه کار به یئے روان وی چه مزه به کوی، خو دا راته وایئ چه دا خوخواری ده که بادشاهی هم وی د خپل وطن د فقیرئ نه به یئے ځار کړم" دلته ډاکټر صیب را و دانګل ویئل یئے چه زه ورته د احمد شاه بابا داشعر وایم چه :

د ډهلی تخت هیرومه چه رایادکړم

زه د خپلے پښتونخوا د غرو سرونه

ما چه دا واوریدل نو ډاکټر صیب ته مخاطب شوم "ډاکټر صیب دا ځایئے خو د مارګلے نه دے خوا دے" په دے اوریدو ډاکټر صیب بیا تک سور شو او ووے ویئل "څه ډ اووے؟ مارګله!؟ خفه نه شے، د مارګلے په خبرو ډ کابل کښے هم زمونږ جذبات را لړزولی دی، مشرانو متل کړے دے "کارغه تر ځالے تیر شو هغسے کرانّ کران کوی" خفه نه شے ستړ کے او غړوئ، دا حال موڅه دے؟ څه درسره اوشول؟

څه درسره کیږی؟ څه شوئ؟ څه کوئ؟ خفه نه شے "کلی کښے یئے څوک پیژنی نه او وایئ وسله م د ملک کړمکیږ ده" چه ډاکټر صیب خوله په دے ډول بیا پرانسته، نو زه پوهـ

شوم چه دده د ننګ جذبات م بیا راویاروول، نو ورته شروع
کیدم "کرنیل صیب! خیره دا سے ده، پچې هغه زما دخولے نه
خبره واخسته او د سے لګیا شو "کرنیل، جرنیل به افغانستان
کښې پاتے شو، دلته کابلے ډاکټریم، خفه کیږه مه - زړے
خبرے مه کوئ، نن اوګورئ، سبه اوګورئ چه دا څه حال دے؟
تاسو لاهغسے په "مارګله"، "مارګله" چغو مست یئ چه نه پوهیږئ
څه درسره اوشول او څه درسره کیږی. آسمان ته مه
ګورئ دخپلو پښو لاندے زمکے نه ځان خبر کړئ. خفه نشی
تاسو په چغو مست یئ او به کورمو چغې اوشوے. عفوه
غواړم خفه نشے. د مارګلے کنړو ته موسترګے اووتے او
چه کندهار کنړر شو، نو هغه موسترګو کښے نه غړیږی
بیا عفوه غواړم خفه نشئ، خوبونو ته بوتیونه وهئ اوچه
په ویښه درسره څه کیږی په هغے نیوهیږئ، زما دموربا هو
چرے به وو،" خونن م د خور دسر شال تارتارشی. دذیه
دنګر ځی ، فکر وکړئ چه څه وئ داڅه شوئ
او څه وایئ او لاهغسے څه کوئ؟ د میرویس مقبره، کوروړنو
اوباهرنو ګورګینانو په سپیرو قدمونو اوشرموله، د
لوئے احمدشاه بابا دمزار ګنبت او د قبر غلاف په ګولو سورے
سورے پروت دے. د غازی امان الله خان د استقلال منار ه

د یلغر کرو دلاسه په وینو او لمبولے شوه ، د تاریخ انغری
ساره ، د غازیانو قلاع کانے ورانے ، د درنو تبرونو عزتونه
لوټ ، د میړنو خونے ټالا ، د سپین ږیرو ږیرے او ښوکیدے
د میرمنو پرونی بازارونو کښے خرڅ شول ، د زلمو د واده
په شالونو او دغزا په شملو غلیمانو ناوله پوزے پاکے کړے ،
د پیغلو خوږند غُنچے غنچے څنړے په خاورو کښے را ښکلے شوے
او څه او نه شول ؟ څه نور پاتے دی چه او شی ؟"
ډاکټر نور هم څه وئیل ، خو مائے مخه اوو هله او ور ته
م او وئیل ، "ډاکټر صیب !

خیر کے شخوندونه دِ پڑے د ږیرو کی
دا زهر موږه څوک هضمولے نشی "

ډاکټر صیب چه دا واوریدل ، نو بیا را نیغ شو او
شروع شو ، "مونږ چه مونږ څوک هضمولے نشي ، خو خفه
کیږه ، په شعرونو وئیلو نه کیږی ، په عمل کیږی ، عمل
چه نه وی نو تش شعرونه قـــوم نشه کړی ، شعرونو
نه واه ، واه کوی ، چق چقے کوی او ورته کهیږی ، خو
عمل نه وی نو فایده هیڅ نه . دا تا چه د کوم شاعر شعر اولکے
دهٔ دلته ډیرے چغے اووهلے ، بیا ورپسے هلته مونږ ته
راغے او هلته چه په مشاعرو کښے مست شو ، نو وے وئیل

چې د غیرت د سرې ډولۍ سره درغلے نه یم
ملګرو واورئ پښتنے به زیږولے نه یم

"لرو بر قوم په سره ډولۍ" مست شو ، خو اوشول څه ؟ اوشول دا چه سره ډولۍ راوړل خو لوبه خبره وه ، چه دا شاعر وایس راتلو ، نو هغه د لیاقت باغ د شهیدانو به وینو لړلی کومو جامو کښې چه افغانستان ته راغلے و ، هغه ئے هم د ځان سره رانه وړے شوے او خفه کیږ ه مه د خوشحال بابا قبر ته ورشه ، د لوے ننګیالی پښتون په قبر چا د ننګه شرمه خو ګمبت جوړ کړے دے ، خو نور داسے پروت دے لکه میرات . هلته او به نشته ، چه څوک بابا ته لاړ شی ، نو تږے راځی او چه د قبر کوم تعویز ورته د کابل پښتو ټولنے رالیږلے و ، د هغے قیمتی کا نړی خلکو پتهول او اوس ئے داوسپینے پنجره کښے بند کړے دے . په ټوند د مغلو دښمنانو د لاسه قیدی و او په مرګ د پښتنوغلو د لاسه بند دے . او بیا عفوه غواړم خفه نشے ، نو ستا د خاطره به داسے اوعایم چه مونږ هم "مارګلو" ته ګورو ، هم د پرد و سرو ډولو ته خوشحالیږو ، هم د مخفی صاحب دکشمیر نه تر چترال ترانو ته مستیږو ، هم د غنی «اے زما وطنه» ته استونړی غورځوو ، کله هم د خیبر سندرو ته چق چقے کو و

ولے ځان ته نه ګورو چه مونږ څه یو، کورته نه ګورو چه څنګه وران ویجاړ دے، ورور ته نه ګورو چه څه رنګ تت پرک او تس نس دے. قوم ته نه ګورو چه څنګه په بیلو بیلو لارو روان دے، نه موږ خبرګه شته، نه مرکه، نه صلاح مشوره، نه یو مشر کشر، خو د هوس په نیلی سور یو. د غرض میدان کښے د نفاق او انتشار منړے وهو، د پښتو، پښتو ن، قوم او تاریخ نه مو د بزکشئ سخے جوړ کړے دے، څوک یو خوا راکاږو، څوک بل خوا، مونږ هریو په دے مست یو چه زه سنه چاپے انداز یم، ولے د قوم هډوکی مو ذرے ذرے کړو او څرمن مو ورته ریښے ریښے کړه. او لا نه پوهیږو، هریو پخپل حال مست یو. دلته هم دا حال، هلته هم دا حال او هر ځائے دا حال - وخت را نه مونږه پرے کړه او مونږ نتکئ نتکئ کوو.»

ما د ډاکټر د دے وینا نه پس هغه ته او وئیل «پس نور مه ملامته کوه. ډاکټر صاحب ته هم خفه نشے. دومره مایوسه کیږه مه. مونږ یو تاریخی قوم یو او د تاریخ ډیر زخمونه مو لیدلی دی - کله زخم کله ګل. انشاء الله دا نني زخمونه به خدائے ګل کړی» ډاکټر صاحب چه دا ولوریدل نو په ډیر اعتماد او زور سره ئے اووئیل «زه هم چه د فکر

آس په دے خونړی میدان کښې ډیر اوځغلوم، هغوآخر دے مقام ته اورسم چې مونږ به بدل شوی یو، خو وینه مو هغه شان سره ده، ولے ورسره راته د تاریخ په لمنه کښې دا لیک هم ښکاره شی چې:

«د تاریخ په ځلو هغه خلک ګلو نه کیږ دی، چې د وخت په چغه راڅوندی شي، ګنی دا ځلی په مړو قومونو راپریوځی، ترے لاندے ښخ شی او ورک شی»

# مِلّی پښتوانه

د مارګلې د کنډاوُ او د ترناو پاټک ترمینځه په لوی شیرشاهي سړک یو ټرک د بس سره جنګیدلی دی. ټرک یو خوا اوړیدلی پروت دی او بس بل خوا مات کوډ غورځیدلی دی او په پوخ سړک اخوا د ېخوا شلګونه بنیادمان په وینو لړلي پراته دي.
څوک فریاد کوي، څوک لاس و پښې غورځوي او څه ویُیلی نشي او څوک داسې پراته دي لکه چه ساه ترې ختلې وي

او چه د یو لوري او بل لوري ټریفک راغی هغه ورته اودریږي او دا مړي او زخمیان سمبالولو کښې اخته کیږي.
یو څو کسان لا هغه شان د بس په پینجس (پنجره) کښې نښتي دي. لاروي لګیا دي هغه داو سپینو نه راخلاصول کوي.
موږ چه راورسیدو، نو موږ هم د دغو خلکو سره د مړو او زخمیانو په سمبالښت مصروف شو. هرڅوک یو زخمي یا

مړے کوری بیا یې د سړک غاړے ته وړی او بیا نور حاضر یې کو ښځیں کوی چه د قبلے د لوری را روانو موټرونو، بسونو او ټرکونو ته زاری منت اوکړی او دا بلا و هلی هسپتال ته اورسوی.

په دے محشر کښے چه یو دوه کسانو یو زخمی پورته کړو او د سړک خوا کښے یې د یوے اونے لاندے واچولو، نو چا یوے آواز اوکړو چه دا زخمی څنګه دے؟ دویمې آواز اوکړو چه پرین زخمی دے ښخو لا ساه کښے ده او زر کړئ مهربانی او کړئ چه موټر ته یې یوسو چه هسپتال ته اورسی. دا غریب څوک افغان مهاجر ښکاری.»

د دے غږ په اوریدو سره موټر د غه زخمی ته روان شو، خو زموږ مخکښے یو بل مضبوط غوندے سړے په دے آواز په منډه هغه زخمی ته رسیدلے و. چه موټر ورغلو نو موږ د زخمی لاس ښځیں او وجود سم کړو او دے بل سړی زر خپل قمیص او ویستو او یو کته یې ګکښے او نغښته او د مریض ماته پنډۍ یې پرے سخته سخته داسے او تړله چه هغه کته د زخمی په زخم راغله او دغه شان وینه بهیدل بند شول. د لته ما زر د موټر نه خپل څادر او یو جوړه خپلے جامے راوړے چه دا سړے چه افغان مهاجر معلومیدو، زما په جامو خپل لوڅ ځان پټ کړی

او په څادر د زخمي نور زخمونه او تړي. ولې هغه سړی دومره هيبت اخستی و چه دے هيڅ ته يې خيال نه و او زخمي يې په برښنه شا (ملا) پورته کړو او زمونږ موټر ته يې اوړسولو او راته يې او وئيل نورې خبرے به کيږي او د نورو زخميانو او مړو به ډير څوک پيدا شي، خو دې بد بخته افغان مهاجر څوک نشته، را ځئ چه دے زر تر زره شفاخانے ته اورسوو.

د دے خبرو سره سم مونږ هغه زخمي را روان کړو او د اسلام آباد د پاکستان انسټي ټيوټ ...... ميډيکل سائنسز (هسپتال) ته مو اورسوو. هلته لوئې ډاکتران پيښتانه دي او زما کشر ان عزيزان دي، نو هغوی سمدستی د هغه ساتنه او پالنه شروع کړه او لږ وخت کښے يے د هغه نوري او لازمي طبي امداد اوکړو او بيا يے په يو سنه مسترح ځائے کښے په يو کټ واچولو او مونږ ته يے اووئيل چه دا زخم يے شديد دے، خو خطرناک نه دے - تاسو فکر مه کوئ، مونږ به يے سنه خيال ساتو.

دا زخمي بے هوشه و، ولے ډاکترانو مونږ ته تسله راکړه، نو مونږ ترے را روان شو او هغه بل سړے (افغان مهاجر) هلته هغه سره پاتے شو. دلته ده ماته ځان اوښائيلو چه دے زما زوړ واقف دے او د افغانستان اردو کښے ډگرمن (ميجر) وو. اوس مهاجر دے او اسلام آباد کښے ديو پښتون

ټيکه دار سره د هغه په مزدورانو مشر مزدور يا کاردار دے او د اسلام آباد په بانۍ پاس پېښاور پوانسټ سره نزدے په ځنګل کښې د نورو پښتنو مزدورانو سره په جونګړو کښې اوسېدې. پنځوس روپۍ ورځ مزدوري کوي. د غه مے دوه ئ دده د سنه سمې توب په وجه ټيکه دار ور کوي او د شپې د نورو ځلورو پښتنو مزدورانو سره په شريکه اخلے پخلے کوي او ګوزاره کوي. د غه شان په دے خواره ورځ او مزدورۍ کښې پېسے هم بچ کوي او مياشت په مياشت ئې په تهل کښې د نورو عزيزانو مهاجرينو سره پروت بود ا رنګور پلار ته، دده د ماند يينے (سنځے)، او يو لسل کلن زوے او دوه کلئے لور د يو وخت په نيمه ګېډه دوډۍ دپيدا کولو د پاره ور کړی.

مونږ چه په دسبا هسپتال ته ورا غلو، نو ډاکټرانو د مريض پوره خدمت کړے و او مريض په کټ سنه سمبال پروت و، هوش کښې راغلے و. مونږ سره ئې سلام کلام اوکړو، يو بل مو اوپېژندو. دے هم د افغان اُردو د ټينکونو د فرقے افسر و او د "انقلابيانو" ملګرے او فعال غړے و.

مونږ ورسره کښېناستو۔ د حال احوال پټوس مو ترے اوکړو هغه د ډاکټرانو درويے او خدمت نه ډير خوشحال وو. هغوی ورته وئيلی و چه ته مونږ ته فلانکی (زه ئې ياد کړے وم)

را وړے یئ ، فکر مه کوه زر به ښه شے . مونږ هم ډیره تسله ورکړه اوسړے مونږ هم مطمئن او خوشحال کړو . دهٔ راته اوویل چه مهربانی اوکړئ دپنډئ ښینبوں په لوے سړک دواه فیکټرئ د بورډ سره د افغانی هوټل ته خبر ورکړئ چه خان دا د (دا دده اصلی نوم نه دے) موټر وهلے دے ، شفاخانه کښے دے "

مونږ دا خبرے کولے چه هغه افغان مهاجر را ننوتو چه بیرون یئ دا زخمی مونږ سره د لته رارسولے و . ولے د هغه په راننوتو سره چه دے زخمی په هغه سترګے اولګیدے ، نو به کټ کښے او خوځیدو او هغه ته یئ په ځیر ځیر ، نیغ نیغ کتل شروع کړل او هغه چه دے اولیدو نو خاموش اودریدو اوکوزه یئ کتل . زخمی لږ لحظه پس خوله پرانستله اوهغه ته یئ اووے " انډیواله! دا ته یئ ؟ " ، هغه جواب ورکړو " هوملګریه دا هم زه یم " دے نه پس زخمی یو لحظه بیا سترګے پټے کړے لکه چه څه سوچ کښے پریوتے وی . او په دے دوران کښے مونږ زخمی ته ددهٔ دایکسیډنټ ، زخمی بے هوشه حالت ، ددے افغان مهاجر دزخمی دخدمت اوهمدردئ او دلته د رارسولو قیصه در زر واوروله .

هغه زمونږ د خبرو سره اوریدل را وریدو ، تاؤ را تاؤ کیدو ، لکه چه زمونږ خبرے اوری او ورسره فکر کښے ډوبیږی او دا بل افغان مهاجر دغه شان غلے ولاړ دے او دے هم لکه چه په زړه کښے څه

کری ربیی . څو دقیقې پس زخمي مخ را واړولو او افغان
مهاجر ته یې اوویل " انډیواله که د میدان شهر په حمله کښې
دِ دتوپ په ګوله ویشتے وے نو مړ به وے ولے نن دے په کړم
اوس سوچ کوم چه هغه مړ بنه وم ، که دا پړ " هغه بل چه دا
وا وریدل خو مسکے غونډے شو او ورته یې اوویل " ملګرے هغه
مقابله وه او دا پښتو ده . په دے کښې پړ وُړ نشته ، دا ملي روحیه
ده " په دے خبره زخمي بیا سترګے پټے کړے ، خو دا ځل یې
په زیړ مخ د غُصے په ځاے اطمینان او په زخمي تندی د کونجو
په ځاے دنیا محسوسیده ، لکه چه د مهاجر افغان د پښتنی ننګ
خبرو یې پښتنی وینه او مینه را لړزولی وی . او بیا یې سترګے
اوغړولے . د ده ته یې لاس راوړ د کړو او ورته یې اوویل
" انډیواله ! منم خوستا پښتو او ملی روحیے ، زما سترګے
اوغړولے نو ماته دے هغه وخت راپا د کړو چه مونږ هلکان
وو او سبق مو ویلو او بیا حربی پوهنتون کښې مو تحصیل
کولو ، نو تا به د خوشحال بابا دیوان هر وخت ترخ کښې
ګرځولو . مونږ به ورپورے خاندل او تا به وئیل چه دے
کښې ملي روحیه او افغانی ننګ دے . نن دِ ثابته کړه چه
هغې کښې به هم هرڅه وو ، خو ستا په رګونو کښې سره وینه
کښې هم هرڅه شته " د ده په جواب کښې هغه بل افغان مهاجر

دهٔ ته لاس را اوږد کړو او په ده را ټیټ شو. اول یې دده دا لاس ښکل کړو، بیا یې دده تندے ښکل کړو او ورته یې اووئیل «ملګریه! ماته هم یاد شی چه مونږ او تاسے په روس کښې عسکری تحصیلات کول او کرغیز ستان کښې په فرونزے ښار کښې وو، نو تا به هلته کنفرانسونو کښې د «غیرت چغه» لوستله او اکثر به د دا وئیل:

چې ته تږے، وینه به نه وی واورئ
چې ته کښې سره وینه به نه وی واورئ
زه د وطن د شهیدانو وینه
یوارمانی غوندے فریاد کوم

ص

نو ته هم د ملت او خاورے صادق بچے یې، ستا خیله تږے ده او سره وینه به نن د ولس د شهیدانو ارمانی فریادونه اوری.»

دد ے نه پس دوئ دوا ړو ډیر د زړه خوالے (دمینے او دوستئ او یارانے خواږه زاړه یادونه شروع کړے. مونږ په شیبه دده دوئ د خبرونه هم خوند اخستو، هم حیرت، هم افسوس او هم سبق. بیا مو دغه شان پرینبول او مونږ ترے راپاڅیدو. البته په د سے لږ وخت کښې ددوی په لنډ مجلس دومره پوهه شو چه دوئ ند په شروع کښې ښه دوستان وو، خو روستو بیا دیوبل د سر او د ځان دښمنان

شول او دوا پړه دیوبل د پلو دحملو د لاسه وړاندې وروستو۔ پاکستان ته راغلی وو۔"

څو ورځې پس زه هسپتال ته لاړم چه زخمی "خانداد" اووینم، ولے هغه نه و، رخصت شوے و۔ ډاکټرانو اووئیل چه پلاستر مووړته او خیږولو، زخمونه یې پټه جوړیدو شول، د هسپتال دپاتې کیدو ضرورت یې نه و، نو هغه بل کابلی افغان مهاجر دځان سره بوتلو۔

دوه ورځې پس زه د اسلام آباد نه په رخصتئ کلی ته راتلم او د پشاور پواښتې سره م د مزدورانو جونګړے اولیدے، نو دے زړه راته اووئیل چه راشه دلته څو دے جونګړو کښې هسے هم ټول پښتانه مزدوران دی، ورشه دعزیزانو نه معلومات اوکړه چه که هغه افغان مهاجر او زخمی "خانداد" دې پیدا کړو چه د حال احوال نه یې خبر شے۔ اتفاق ته گوره سم زه د پوخ سړک نه په کچه بے لارے کنډوکیر ورتاؤ شوم چرته زمونږ یک اپ دهغه افغان مهاجر راغے او هغه را وړاندے شو۔ یو بل مو اولیدل، سلام کلام مو اوکړو۔ معلومه شوه چه زخمی ددهٔ سره په جونګړه کښې پروت دے، نو د موټر نه کوز شو او هلته ور روان شو۔

هلته یو څو داسے جونګړے وے چه د زړو بوریو (بوجو) کپړو، پلاسټکو او وښو څه جالے غوندے وے او یو یا رخو ځانته یو کمر کښے غار غوندے جوړ کړے وو، هغے کښې غزیدلے وو۔ داسے نه

معلومیده، چه دا هستو کښې به د لمر د ګرمۍ یا د باران سیلۍ مقابله
اوکړے شي، خو د اپښتانه پکښې ډیره وو. څوک به کټ پروت و
څوک به مزکه، چا خپلې جامے (کالی) وینځلے، چا کینتلے (چا جوش)
به ګنډو اینبے وو، هور تر لانډے وو، چا به یې ډوډۍ پخولے. څوک
دره کسان ناست وو خبرے یې کولے، چا خپله ځاله (جاله- جونګړه)
سموله. مخامخ یوه تنګه غونډے جو میړۍ وه، هغ کښې یو کټ
سم پروت و بل ایوته. په سم پرتوکټ کښې زمونږ زخمی پروت
و او په ایوته کټ کښې زمونږ د سویرۍ یو خټک مزدور اوده
و. اوۀ هغوی اووئیل چه د دواړو کټونو ترمینځه به مزکه دا
افغان مهاجر اوده کیږي، ځکه چه د هغه کټ ته زخمی راغلے دے.
چه مونږ دے مزدورانو اولیدو، نو اکثر زمونږ د علاقے
خټک وو، نو ټول راجمع شول او مونږ ته یې هرکلے اووئیلو.
مونږ چه هغوی ته اوکتل او د ے ځالو (جالو) او دے غار ته
مو اوکتل او د خپلو عزیزانو دے حالت ته مو اوکتل، نو ډیر
دلګیر شو. ما په دے زړه کښې اووئیل چه" خدایه زمونږ د
پښتنو برد اسپیره ورځ ترکومه وی "، ولے هغوی لکه چه به دے
خوشحال وو چه که د ناستے ملاستے د پاره یې د سرې توب ځاے
او د خوراک څښاک د پاره یې د سرې توب څه توبنه نشته و لے
د یاړي ( ارزانه مزدوری ) خو یې پیدا کړے ده.

ما کتل چه زمونږ د سر دپاسه فضا کښې د اسلام آباد د ویرانو (خزلو او کنډکمئ) نه نور کارغان د ماښام د راتلو نه مخکښې را پاڅیدل او په مړه ګیډه د هغه ځنګل خوا ته الوتل. د خپل آرام او اطمینان هغه ځایونو ته خوشحال خوشحال روان وو، کوم چه د دوی د پیدا وښت او طبیعت سره سم د خدای په کور کښې د دوی برخه وه. او کران کړان یې کول، لکه چه د پښتنو مزدورانو ته وائي چه مونږ څو د خپل فطرت، ضرورت، ژوند او خوښې مطابق ورځ په خوشحالۍ تیره کړه، چه څه مو خوښ وو او څه مو ضرورت وو، هغه مو اوخوړل او س خوشحال خپلو هستوګنو ته په خپله مرضۍ د آرام شپه تیرولو ته روان یو. ولې وائي اے د لویے پښتو نخوا مالکانو پښتنو تاسو به ترڅو د غه شان د خپلے خاورے او ټبر نه ورک، بوله ورځ د خوارۍ زارۍ، نیم اوږی، نیم بربنډ، د خپلے مرضۍ، پښتنی ژوند انسانی شرافت نه محروم، در په در، ورځ او شپه په غم او تکلیف کښې ژوند تیروی.

زه په د ے اندیښنو کښې ډوب زخمی ته او رسیدم، هغه چه اولیدم، نو په پریوتی یې سر او نیم بدن را او چت کړل، ماته یې هرکلے او وئیلو. او زمونږ د راتلو سره چه هغه بل سړے د ایوب ته کټ د خوب نه را پاڅیدو، نو د هغه په ځاے زه کښیناستم.

افغان مهاجر او نور عزیزان هلته او دریدل او د زخمی حال احوال

او د عزیز انګیپ شروع شو. یو عزیز اووئیل "یخ بوتل راوړم، که زر زر چاے پخے کړم" ما یه زړه کښے اووئیل چه ددوئ به دے حال کښے ددوی یخ یا تود کوټ دستې نی تیر ول زهر کوتل دی او هغه ته م اووئیل "بس. مهربانی ماته خوانبه شیر نه دی، تر یخ ښکلے شم نه چاے" هغه اووئیل "تربه نشے ښکلے، خو دا ملګری به دِ او ښکلے او ته به هم یو کوټ واخلے" هلته یو ولاړ عزیز اووئیل "خفه کیږه مه، مسا پر یو، مزدوران یو، هیڅ نه لرو خو پښتو لرو، بے پښتو کوه مو مه، څه خو او ښکله." ما زړه کښے اووئیل چه دهٔ ته جواب ورکړم چه "عزیزه پښتو- پښتو مه کوه که پښتو وے نو ستا سو به دا سے ژوند نه وو." او د خوشحال بابا دا شعر م ذهن ته راغلو چه:

هره چار د پښتانه تر مغل ښه ده
اتفاق ورځنے نشته هغے آرمان

ولے بیا را ته زړه اووئیل چه دا غریبانان پرے بد حال او بد ورځ هسے هم د تولے ورځے مزدورئ ستړی کړی دی او د کور او بال بچ جدایئ کښے زهیر دی نور یے مه خفه کوه- او ددوی څه ګناه ده، ګناخو د هغه چا ده چه ددوی استحصال کوی، دخپلے معتبرئ او مشرئ دپاره یے دوی هر قسم لوبے کولو یه غرض دی غافل، جاهل، پرتر بګنیو او بدیو اخته ساتی، دوئ روزئ پسے د کور کلی نه ورک

نو په در د محنت خولو کښې ډوب او په خمونو د ړدونو لړلی سر وهلې بروهلې ګرځي ! په وطن غیرت او پښتو نن هم سر ورکولو ته تیار دی، خو د وطن، غیرت او پښتو د ساتلو احساس او شعور په کښې څوک څنګه پیدا کړي.

چه د زخمي افغان د صحت حال احوال مو سره اووئیلو نو هغه د نورو خبرو نه وړاندې ما ته اووئیل چه ډیرې ورځې اوشوې د وطن د حال احوال نه خبر نه یم، که د "وحدت" اخبار در سره وو، نو ماته یې راکړه. ما زرخیل ډرائیور ته آواز ورکړو چه زما د بیګ نه اخبارونه راوړه. د اتفاق خبره وه چه د غه وخت ما سره صرف د پښتو "وفا" اخبار و، چه د افغان مهاجرینو منورین رسول امین او زلمی هیوادمل یې چلوی. ما هغه اخبار هغه ته ورکړو او هغه زمونږ مجلس پرېښو په هغې مصروف شو او د سرخط د لوستلو سره ما ته مخاطب شو "څومره حقه خبره یې کړه " هغه ترونونه چه ملي پښتوانه ونلري، قانونیت پیدا نه کړي، د هیواد مشکلات نشي حلولای" ما چه دا واوریدل نو هغه افغان مهاجر ته م اووئیل " ته هم د ې خبرې ته حقه خبره وایې " هغه اووئیل قطعي خبره ده "بغیر د ملي پښتوانې د هیواد مشکل نشي حل کولې " زه په دې خبره موسکې شوم او دوا ړو ته م اووئیل " رفیقانو!" منبر ده چه د

د روږد وژنے او هیواد په وینو او هور کښے ډوبولو نه پس نن "الله یو الاان" او "ملګری"، هم شوئ او د "ملي پښتوانے" په ضرورت باندے هم پوهه شوئ.» هغه زخمي په کټ کښے اوخوځیدو او ځان یې ماته جواب ته سم کړو او وے ویل "هو خفه کیږه مه، ولے تر خو هم هلته وے کمه او چه مونږ په "ملي پښتوانه" نه پوهیدو او د پردو لاسونو د یو بل وژنے او کور سوځولو دپاره هڅولو، نو تا هم هغه وخت مونږ ته "ملي پښتوانه" نه یاد وله. د مشرانو سره به ناسته وے او په ملي روحیه او واقعیتونو دِ نه پوهیول ولے؟ بد یم او وویل؟" زه ورته مسکے شوم او ور نږدے شوم شام ورته او ټپوله او تندے یم یې ښکل کړو او ورته یم او وویل "بد دِ او نه ویل، ځو ز لمیه تا ته څه پته ده چه ما د حزبونو او بیا چه هغوئ دولتي مشران شول سره څهٔ ویلي دي او څه لیکلي دي. ته لږ انتظار اوکړه، ما سره هغه ټولے خبرے لیکلي پرتے دي. زه د وخت انتظار کوم، هغه هر څه یو تاریخ دے، د ملت او هیواد امانت دے، په ما د هیواد او ملت قرض دے او زما فرض دے چه هغه هر څه د دنیا ته وړاندے کړم چه څه څه وو؟ او مونږ د خبرے وخت او ځاے کښے څه کړي دي؟ ولے اصل خبره به تاسے د واوره او ټول باخبره رونږه افغانان او منی چه هغه داسے وخت وو، چه د افغانستان

واکداره مشران به په خپل خپل هڅت هر یو په اس سورشو نو بیا یې دچا نه اوریدل . ما خو پریږ ده زه خو به خپل بیان انشاء الله په پوره سند بوللے دُ نیا ته او کړم ، خو هغه باچا خان چه د هر یو حزب مشر او کشر به ورته بابا وئیل ( نوے خبرے نن کوم تاخي پیدا کوی ) هغه بابا چه ورته حقه خبره او کړه ، نو هغه ته « دا افغانستان یو انقلابی رئیس صیب » دخپلو وزیرانو او جرنیلانو په وړاندے او وئیل « دا زړے خبرے هیرے کړه دا دے وخت تیر شو ، اوس انقلاب دے ، چه څوک دا سے خبرے کوی نو هغوئ مونږ دیوال ته اودروو او ګولئ پرے سره وو . » او زلمیه دلور "رئیسانو" او "مشرانو" سلوک په دلته نه چیړم ځکه چه په زخمونو دمالګے دوړولو وخت نه دے ، په زخمو نو باهے کینبودلو وخت دے . او زلمیه په دے لړ کښے چه کوم تحریری مشورے ، دتحلیلونو ( تجزیے ) او تیزونو ( تهیسونو ) مونږ خارجیانو ته ورکړی دی ، په هغوی به دوئ خفه کیدل او هغوئ به ورپورے خندل . شکر دے چه دا ټول ریکارډ ( اکثر ) ما ته دخپل ورور عبد الرؤف تنړیوال دکور نه صوفی جمعه خان رارسولی دے او ما سره محفوظ دے او دخارج نه هم یو څه لاس ته راغلی دی ، که خدائے ته منظوره وه مخ ته به دِ راشی ، ولے بیا هم نن تا ته جواب نشم درکولے . نن صرف دا وا یم

چه خدای دی مونږ، تاسو او ټولو هیواد والو ته توفیق راکړی چه د حالاتو نه سبق واخلو. نور خان ته دوکه نه ورکوو، د چا په خوله سرونه نه ګډېږو، یو ځل بیا په تاریخی خاوره یو روښانه یو ملت شو. تاریخی افغان د مستقبل افغان شو.»

ما چه دومره خبره اوکړه، نو هغه «افغان مهاجر» زما خبره لنډه کړه او ووی وئیل «با خبره خلقو ته هر څه معلوم دی، هغه داسی تود تم وو، چه ږوند اولس خو ږوند وو، روغ مشران هم شبکور شوی وو. اوس د هغه وخت نه سبق اخستلو وخت دی او د خدای فضل دی د افغانانو سترګی اوغوړیدی.»

بیا ده (افغان مهاجر) هغه زخمی ته مخ واړولو او هغه ته یې اووئیل «دده یو لکه د خیل بچی ملګری شهید ډاکټر نیاز محمد مومند (یو مومند ډاکټر جلال آباد و) زه به د هغه سره دوئی کړه ورتلم، دده به مونږ ته هم د غه شان ملی مترقی خبری کولی، ولی بیا مونږ ته اووئیلی شول چه دده کورته مه ورځئ، ولی بیا هم مونږ پټ پټ ورتلو، ځکه چه دده خبرو کښی هم مترقی فکر و، هم ملی ننګ.»

زخمی چه دا خبری واوریدی، نو وی خندل او ووئیل

زه هم د وئ سره پېژنم ، خو چې کله م تر اوس هم شته چه د دے
د ورو په څېر ، تجربې او قربانۍ سره یې د ملي ننګ او اولسي غورځنګ
قلم پر سېنو - او نور به څه نه وایم ....

ما چه دا خبرې واورېدې ، نو په ده م پښتني ننګ غزونې
شروع کړې ، خو لاس و پښو کې م د .... د رنې تولو
زنځیرونو غږونو ته هم پېژنېږم ، په دے حالت ډیر خفه شوم ، خو
کاش چه تېر وخت بیرته راګرځیدے شوے ولے چه زخمي او ملاحین
تر م او کتل چه پرون دیو بل مرګ پسے ګرځیدل او نن دیو بل
نه خاریږي او د غیرو د لاسونو نه بیزاره او متنفر ملي پښتوالي
او ملي وروري ته لیوال دي . پرون د افغانستان د خرابۍ
د پاره د مخالفو دلو او باهرنیو لاسونو افسران وو او نن
د افغانستان دیو واحد ، مستقل ، خپلواک او ننګیالي مستقبل
خادمان دي ، نو د اُمید او خوشحالۍ وږمو م د زړه ګل
اوغوړولو او دا شعر رایاد شو :

خیر دے شخوندونه د یړه دیر او وهي
دا زهر موره څوک هضمولے نه شي

# ټنګ

دا دریم ځلورم ځل دے چې موږ د اسلام آباد نه کلي ته راځو او د برهان پاټک سره د موټرو، ټرکونو او بسونو په رش (ګڼه ګوڼه) کښې زموږ ګاډے رفتار رو کړې یا اودریږي نو هغه خپړیر هلک رانه شي چې نور کله به په منډه منډه د هر موټر خواته اودریدو وراته وړي به یې ورته نیغ نیغ کول او په افغاني لهجه کښې به یې نعرے وهلے "سپتے دو دو روپے لے لو"، "چلے دو دو روپے لے لو" - "بهتے دو دو روپے لے لو" - دا خوانه وړي په دوه دوه روپئ "۔

چې نظر مو اوغځلولو نو هغه سړے موهم او نه لیدو، کوم چې د لته د دے سړک سوویل (جنوب) غاړے ته د اونے لاندے ناست و، سپنی لاس یې پے ماتکو د په جولئ کښې پروت و او په ګس (کینړ) لاس به یې وار په وار کله د هور سکرو ټو (سروټکو) ته پکے وهو لو، کله به یې وړې په هور اړو را اړول

او بیا بیا به یې مخامخ د سړک نه لن لرې د یو څو کورونو په خواکښې یوې جونګړې ته داسې کتل، لکه چه څارنه یې کوی.

یوه ورځ چه دې ځایځ ته راورسیدو، نو د سړک خواته یو بوډا غونډې افغان اویو ورسره مخ پیټی پیغله ولاړ دی. د بوډا عمر د شپیتو نه زیات نه ښکاری خو خواریو اتیا کلن کړې دې او څه ګیډه وړې جامې یې اغوستی دی او وران ویجاړ پټکې یې په سر دې، یو کوږ اوږ لرګې یې لکه داسا په ځای ورسره ذې. په یو لاس څیله لویه بڼ یره لکه چه په میاشتو یې قیچی نه وی لیدلی، بې ډوله را لویه شوې ده، نیولې ده او په بل لاس کښې یې امسا ده، ولې د امسا سره یې یو لاس داسې نیولې دې چه هر بس او موټر ته وایئ چه اودریږه، مونږ دواړه سواره کړه، خو څوک ددوئ نه په هوا تیر شی او څوک ورله اودریږی، ولې دوئ یورته نه کړی، په غنترې روان شی.

پیغلې اوږ د زوړ افغانی لباس اغوستې دې، یو لاس یې خوږ د پلاستر ورته ختلې دې په غاړه کښې یې اویزان دې، په بل لاس یې توره لوپټه کښې مخ اوسر پټ نیولی دی، خو سترګې یې ښکاری بل چه په تندی او مخ یې پیټئ لګیدلی دی، زخمی ده، هغه ښکاری. چه کله دې رانږدې شی، بوډا ورته د امساء لاس

اونیسي او دا پېغله درا باخېدو کوشش کوي، خو راباخېدے نشي، لکه چه ملا، توجه يا پښنه يے خوږ وي.

مونږ چه دوی ولیدل، نو زړه مو درد اوکړو او چے ورته راورسیدلو مو یک ایے هم ورته اودرولو، ورنږدے شوم تپوس م ترے اوکړو: "بوډا چرته تلل غواړے؟ او څه راخیږې؟"

هغه دا مسا لاس د سترګو د پاسه لکه د چتر اونیولو، ما ته یے په ځیرځیر اوکتل، بیا یے جواب راکړو "حسن اودال ته دا مریض بوځم". ما چه اوکتل نو پېغلے مخ بل لوری ته واړ ولو، پرده یے اوکړه او بوډا را ته اووئیل "روره! خدایے تا سره ښه اوکړه، مونږ خو کرایه نه لرو". ما جواب ورکړو "دا د کرایے موټر نه دے، دا د خدائي خدمتګار موټر دے، دا د هر افغان او هر پښتون موټر دے." بوډا اووئیل "څنګه؟ (سوچ)، خدائي خدمتګار (سوچ)، څه دے اووئیل؟ (سوچ) کوم خدائي خدمتګار... (سوچ)" او بیا یے پېغلے ته اووے "را ځه لورے خپل سړے دے، را ځه" بوډا اول پېغله په غېږ کښے اونیوله او په ډېر تکلیف یے راوخیژوله او بیا خپله راوختو.

په دے دوران کښے چه ما دے د نږدے نه اولیدو او خبرے یے راسره کولے، نو ما ته د مزار شریف د علاقے په یو کلي کښے یوه دوه حجره کښے یو مومند پښتون رایاد شو. هغه وخت چه مونږ د

محمد گل خان مومند ځائې ته ورتلو او لاره موخطا کړې وه، په
یوه حجره ورغلی وو. دهغې حجرې خان اول زمونږ سره هرکلے
سره دارمدار او سره عزت کړې و ، بیا یې خپل یو عزیز راسره
کړے و د مومند بابا حجرے ته یې رسولی وو. ددے بوډا په
لیدو ماته هغه سړے را یاد شو، خو تپوس مې ترے اونکړے
شو. بیا هسپتال ته رارسیدلے و، هغه هسپتال کوم ته چه دا بوډا
دا پیغله بوزی او کوم هسپتال کښې چه پولیس والو د امریضه
ځوورځے مخکښې داخله کړې وه. بوډا او پیغله موکوز کړل،
ما چه جیب اولټولو نوڅه لږے پیسے په اسلام آباد کښې دځو
ورځو دګوزارے دپاره راسره وے، خو بیا مې هم زړه ټینګ نکړو
اوڅه مې ترے په ډیر زور دبابا جیب کښې واچولے.

بله ورځ چه د اسلام آباد نه واپس راتلم نو دځایه مې
فیصله کړے وه چه برهان ته اورسم نو د بوډا او پیغلې تپوس به
کوم، د رک به یې معلوموم او تنخواه مې آخیستے ده څو پیسے
به ورکوم. ددے اراد ے سره چه هغه ځائې ته را ورسیدم چه
تیرو ورځو کښې بوډا او پیغله کوم ځاے ولاړ وو ، نو هلته په بټی
کښې یو سړی کار کولو، د هغه نه مې دهغوی تپوس اوکړو،
سړی زر په لاس اشاره اوکړه او ووے وئیل چه هاغه مخامخ
کورونو سره چه جونګړه غوندے ده، هلته یې تپوس اوکړه.

ماچه دا واوریدل، نو ماته رایاد شول چه دغه جونګړے ته به ورځې ورتلونکی سړی بیا بیا ډیر په خار کتل. او دد ے را یاد یدو سره مِ د جونګړے ته ورتلو تلوسه نوره هم زیاته شوه او وار اغلم چه ګورم چه د جونګړے خوله کښې هم هغه بوډا په مزکه ناست دے او لګیه (امسا) یے په جولئ کښې پرته ده. تسله مِ اوشوه چه په اسانه مِ پیدا کړو، خو چه ما پرے سلام واچولو، نو دهٔ راته د اسے په ناخوالئ کښے وعلیکم سلام اووے لکه چه زما په راتلو خوشحال نه وی. خیر زه ور سره خبرو ته کښیناستم. مخامخ راته د جونګړے د ننه پیخله هم ښکاری او یو، بله پنجابئ جینئ ورسره خبرے کوی.

ما بوډا ته اووئیل چه مشره! که خفه کیږے نه نو یو پوښتنه درنه کوم؟ هغه سترګے را پورته کړے او وو ے وئیل "روره! ستا ډیره مننه، چه هغه بله ورځ دِ ماسره نیکی اوکړه، خدائے دِ تاسره نیکی اوکړی. بیا به داوی چه نورِ مِ مه عذابوه او اوس راسره دا نیکی اوکړه چه ما پریږده." ما ورته ووئیل چه عذابوم دِ نه، خو داتپوس مِ درنه کولو چه ته هغه مومند خو نه یئے چه زه دے د مزار شریف علاقه کښې د محمد ګل بابا کورته بوتلے وم. بوډا چه دا واوریدل نوسترګے یے زما په لور راپورته کړے بیا د ځان سره غلے شو

لکه چې حیران وي چې ما ته څه جواب راکړي. زه پرې پوهېږم
چې ویې پېژندم او دې دوران کښې زه هم اورسېدم چې هم هغه
مومند وې، خو سوچ کوي چې ما ته ځان اوښایئ که نه. نو
ما ورته زر بیا اووې "مشره! ما او پېژندې چې هم هغه یې، زما
نه ځان مه پټوه، دا ورځ یواځې په تا نه ده په ګرد افغان ده.
او دې کښې ستاسو غلطۍ، کمزورۍ او ګناه نشته، دا خو خدایې
راوستې ده او زه خو ستا رور پښتون یم، د یوې وینې او یوې
خاورې رونړه یو، د پښتو په څادر کښې پټ یو. ستا غم زما
غم، زما غم ستا غم، زما عزت او حیا ستا عزت او حیا او ستا
حیا او عزت زما حیا او عزت. ما چې دومره اووئیل نو هغه
ځوړند سر راپنغ کړو او ما ته یې په وینو سترګو اوکتل او سترګې
یې سرې کېدې، لکه چې زما په خبره یې زوړ زخمونه تازه شوي وي
او وینې یې خولې ته راروانه وي. ما زر بیا وینا شروع کړه: "مشره!
زه پوهېږم چې ستا د زړه او ذهن پر هرونو باندې م مالګې او دوړولې
خو خفه کېږه مه- زما نیت دا نه دې چې زه تا ته تکلیف درکړم"
بوډا چې سترګې سکته په مزکه ښخې کړې، د مسواک ګوټې په
سر یې مزکه کښوله. یو سوړ اسویلي یې بې اختیاره د خولې
نه اووتو په ډډ غوندې آواز یې، لکه چې د تاترې د اوچت سر
د سورۍ لاندې د کابل سیند د ترک زو او ملاګورو سره کلې

شکو کښې مهين روان وي او کله غټ غټ ګټان رغړوي ، مانه او وئيل
هوا روره ! ما په اولنه ورځ پيژندلې وې . هو ، هم هغه مومند
يم ، خو اوس هغه نه يم ، نو ښه به داوي چه بس ما پرېږده"
ماورته اووئيل "څنګه دې پرېږدم ؟" هغه جواب راکړو چه داسې
مې پرېږده چه دلته پرناست يم او دغه جونګړه کښې به پروت يم
هاغه مخامخ قبرونو کښې زما د بازګل زوے او نورجان بچي قبرونو
ته به د دلته نه ګورم . " ما په پيره جلتئ په حيرت
غوندې بيا تپوس اوکړو " مشره ! هس ! دا دے څه اووے ؟"
بوډا جواب راکړو " هو ، څکه خو درته وايم ما پرېږده .
او پرېږده ده نهے قيصه ، دلته اوس هغه هيڅ نشته او هيڅ
نه دي پاتے ، بس هاغلته زما دوه قبرونه او دلته دے جونګړه
کښې زما خوږه لور مشاله ، زخمي مشاله . ما سره د مير باز
امانت او زما دا نغري حيا"
زه "مشره ! دا څه څه وايئ" هغه " هو ، روره زلمي
بازګل به هلته مخامخ وږي ورتوئل او ماشوم نُورجان سيه
خوځول او مونږ به پرے څه خاورے ايرے کوزاره کوُله ، لاړل
هغه دواړه د مشالې د سره ځار ستول ، لاړل ، لاړل "
زه " وه مشره ! دا څه خبره وه ؟" هغه " خبره نه وه
ډاکه وه ، زما دا لور يئ تنبتوله ، خو خدايئ خير کړو .

دوه زامن مې پرے قتل شول ، مشاله مې زخمي شوه ، دهرڅه نه پاتے شوه ، ولے حيا مې لانه ده او د ميرباز امانت ، امانت پاتے شو ( لوے اسويلے ) زه « مشره ! داڅوک وو ؟ او ولے ؟ » هغه ( را اوږ داسويلے ) ماخو دڅه هرڅه اوو نيل خوته پوهه نه شوے . ولے ارمان چه غوږ ونه مې کاڼه وے . د هغوئ په وطن ښه خبرے مې نه وے اوريدلے . »

زه « په مشره ! حال را ته ووايه ، دا په تاڅه شوي دي ، ماخو پيژنے کنه ، زه خو دِ ورور يم ، ماخپل ورور اوګڼه . هغه « ورور ؟ ، ورور ؟ دا زه دے پنجاب ته رار سولے چا يم دا دلته د خلکو نه ګوشه پروت ولے يم ؟ د چا د لاسه ؟ هغه سړۀ کا پړ خو سره کاپر وو ، مخامخ يئ را ته توپے کيښوے او زما فلاع يے د خاورو سره خاورے کړه ، ولے د دے مسلمانانو خو راته مخامخ وطن وال هم وے ، مسلمان هم وے او ورور رورے دي . راته هم کول ، خو نه يئ مزار شريف کښے ارام پريښوم ، نه يئ په لاره روغ پريښوم ، نه مې کابل کښے سا واخستے شوه ، نه جلال آباد کښے ، نه کيمپ کښے حيا پريښوم ، نه په کور کښے دخان سره چا په ما رحم اوکړو . يو راته د مشالے دوه روڼې او مور په بم والوځول ، بل را نه لوښې کودی او جامے لباس او شوکول ، چرته را باندے روند يم

راپېږيو نو هغې را ته بازګل ژوبل کړو. چرته چه چا سترګه را ته نزدې شوم هغه مې حیا ته نه شول کتے. کومه کومه به دریاب ته اوڅوک به درته ژاړم.» زه «مشره! بس ته پېر دېر دېډ لے يې نور دې نه دېر دوځم، خو يو سوال درته کوم که هغه او منې او ما سره زما کور ته لار ښيئ نو.» هغه زه نورې خبرې ته پرېښنبوم او زر يې ماته زما خبره په خوله اومنله او ووې وئيل «روره! دا خبره به نه کوې. د داسے خبرو کولو نه به دا ښه وي چه ما او مشاله اووژنے خو دلته مو زامنو سره خوا کښې امانت کړے او چه د ټولو مهاجرو کډې واپس ځي نو زما دريه در خیلخانه به هم واپس شوې وي ته به هغه خبر کړې چه راشي او مونږ دخپل انغری دحیا سره خپلے خاورے ته اورسوي. او که میرباز ژوندے و ورته به اووايې چه ستا امانت خاوروته سلامت اورسیدو او که دهغه خور زرینه ژوندۍ وي، نو نورجان مړ شو اوس د هغه په ځاے د شیرخان اجازت دے، چه ته آزاده يې. پوهه شوے وروره!» زه «بس، بس مشره نور دې نه تنګوم، ما خو فقط د دے دپاره اووئيل چه دلته ستاسو د خدمت او حفاظت څوک نشته.» هغه بيا زما خبره لنډه کړه او راته يې اووے «وروره! د خدمت خبره مه کوه. دا زما د لور

سره ناسته د مشالې ملګرې نورو غریبه د ډیرو هغه ځانونه سنه ده ، او د دې کورونو دا خلک هم په مونږ ډیر ترس کوي . تر دې وخته مونه چا ته لاس نیولې دې ، نه خو لهٔ وازه کړې ده دا خلک پخپله مونږ ساتي او اوس را سره ډیر غم هم نشته . ګیله ده په وسنوهم ډکیدې شي . او مشاله دا سې مغزوره ده چه اوس یې هره بله بلا ورکه ده . او حفاظت ، حفاظت مو خدائې کړې دې او خدائې به یې کوي ، ګنې نو که د ډاکې په شپه د پولیس د ګشت سپاهیان په دغه وخت د لته په دغه لار نه وې راغلي نو بازګل او نورجان خو به یې په خور ځانونه قتل کړل او خور یې هم په دې مشت و ګریوان کیدو کتیې په مخ ، په لاس په چړو او پیش قبضو بده بده اولګیده ، خوسره د دې هغوئي او چیتوله ، تښتوله او زما دا ننګ حیاء او د میړسیاز امانت تالا کیدو ، ولې د خدائې کومک راغې او ډاکوان تش لاس او تښتیدل ، شکر دې کور وران شو خو حیا پاتې شوه ، نو اوس مونږ په خپل خدائې ډاډه پراته یو . "

ما بنام تیارهٔ شوه او بوډا په خپل هوډ کلک و ، نو زه را پاڅیدم او څه رقم مې د هغه جولئ ته او غورځولو ځکه چه هغه نه آخستو . او زه ترې را روان شوم .

څه وخت پس چه بیا اسلام آباد ته روان شوم ، نو بوډا
او مشاله م په زړهٔ پراته وو . زما ذکور خلکو راته ویلی وو
چه کله وا پس راځے نو هغوئ هرڅنګه چه وی راو له . مشاله
به زما د لور سره د هغې په کوټه کښې وی او بوډا به حجره کښے
وی او زه هم په دے نیت روان شوم او د ځان سره م د هغوئ
دپاره څه د خوراک څښاک سامان او څه سبزی ترکاری واخستل
چه برهان ته اورسیدو او ډرائیور م راسره دا سامان
واخستو ، نو څه ګورو چه جونګړه ورانه ده او بوډا او
مشاله نشته . حق حیران او خفه ملال او دریدو . په دے
کښې نورو د خپل کورنه راووتله او مونږ ته راغله . په ژړا
شوه ، مونږ سره غم او فکر شو چه خدائے دِ خیر کړی چه
بیا څه نوے تندر راپریوتے ، خو چه هغې خپله ژبه کښې مونږ
ته بیان اوکړو ، نو پوهه شوم چه تندر نه دے . په بوډا او
مشاله د مصیبتونو په تیارهٔ کښې د راحت رڼا راغلې ده .

قیصه داسے وه چه په دغه کلی کښې د هوټل مالک خپل
هوټل لوئے کړے دے او ورته ئے کابلے باورچی راوستے دے چه
پلاؤ سنه پخولے شی ، ځکه چه دلته د لوئے لار ډرائیوران
دو ډئ خوری ، اکثر سنه پلاؤ غواړی ، او سنه پلاؤ کابلیان
پخولے شی . دغه نوی باورچی چانه د بوډا او مشالے د بدبختۍ

خبرے اوریدلے دی . نو هغه پیژندلی دی ، بیا یه هره ورځ
راتلو او د دوی خبر یې آخستو . یو څو ورځې پس دا باورچي
دیوے افغانی سنځے او دوه سړو سره راغے او بوړا او مشالمې
ترک کښې وا چول د ځان سره یې بوتلل . نورو غریبه نور ه
خبره نه وه ، چه دا څه وو؟ او څه اوشول؟ خو دومره یوهـ
شوے ده چه باورچي بوړا ته خان ماما ، وئیل او چه دا سنځه
او سړی راغلی وو نو هغه سنځه بوړا ته او مشالمے ته بیا بیا
غاړه وتله او په زار زار به یې ژړل او سړی لاړل د سړک
دغاړے نه یې زر زر ترک راوستو .

چه ما دا واوریدل ، نو دے خبرو زما تلوسه زیا ته کړه او
بیغ دغه هوټل ته لاړم او هغه کالبے بارو چي م پید ا کړو ،
هغه راته ټوله قیصه تیره کړه .

دا باورچي په وطن کښې د دے بوړا زمیندار (کسان) و
دے هم دافغانستان د و بیو او هو ر سیلاب اخیستے وو ،
ترسنده یې رسولے و . هلته د بوړا ورور سره اوسید و
او یو هوټل کښې یې مزدوری کوله . هغه هوټل واله د
حسن اودال و ، د دے هوټل واله آشنا و ، نو دهٔ ته
یې دا باورچي رالیږلے وو . د وختونو یا یې لږ سم چکر
خوړلے دے او ورک شوی یې وځائے ته رارسولی دي .

باورچي ماته وائي "خان بابا! دا بوډا د مزار شريف يو خان
وو" ما ورته اوويل "عزيزه! ماپېژندو. هغه خبره
مکوه، اوس دا اووايه چه هغه بلار اولور دِ څه کړل؟"
هغه زر اوويل "هغوئ مِ د هغوئي خپلو کړو ته اورسول"
ما تپوس اوکړو "عزيزه دا څنګه؟" هغه اوويل "خان
بابا! دا بوډا به اوس نواب شاه کښې د خپل مشر بوړا سره
سره ناست وی. ................ مشاله به شل ګود ميرباز
ته رسيدلے وی، ولے ارمان ارمان چه زرينه به چرته وی او
نورجان د برهآن په مقبره کښې خاورو کښې پروت دے."

زه د باروچي خبرو نوُلونو (غمونو، فکرونو) کښې ډوب کړم
کله زمکے ته ګورم، کله اسمان ته. په دے کښې څه ګورم چه مخامخ
د خپل کور نه لږ په فاصله د پيا ده لارے سر پېتی کښې نوُرو
ولاړه ده او ما ته ګوری. زه چه د دے ځايه روان شوم
نو د نورو په طوف پيا ده لاړم، چه هغے ته اورسيدم، نو هغے
تربوزے مخ په سره لوپټه کښې پټ کړے و، سترګے يئے ښکاره
وے، او ښکے نرِے رارواںے وے او ماته يئے خپله ژبه کښلاوويل
"خان صيب! مشاله زما سويلئ (ملګرے) وه، زما استا ده
وه، ماته يئے په ګريوان، په لستونړو او لمنه د وريښمو د ګلونو
جوړُولوچل ښائلے دے. ما سو يئے په دے پېتی کښې فصل نول کړے

دے ، ماسره یئے دغه ارټ نه او به راوړی دی ، زما نشی هیریدے.
زه به ورپسے خفه یم ، ته راسره وعده اوکړه چه افغانستان کښے
امن راشی نو ما به یو ځل مشالے ته رسے ..

مادے زړه کښے اووے چه نوړو څه ساده ده ، که ددے
هر څو وختونه چه مشالے دے سره تیر کړل او هغه لږه ګزاره
چه هغې دے سره اوکړه نشی هیریدے ، نو کنی د مشالے به
هغه مخامخ دوه قبرونه ، دوه رونړه ، په وینو لړلی ګلونه
په دے بده ورځ پردی مقبره کښے هیر شی.

دلته باورچی خبره شروع کړه او زه یئے د فکر د تهال نه
راکوز کړم . باورچی نوړو ته وایئ « بچے ! تاخو هغه وخت
هم او سنګے بیوئلے او اوس هم او سنګے بیوئے ، ولے ته پوه
نه شوے چه مشالے خپله نوره زړه لوبتیه د نور جان سے
قبر غوړوله او بوړا د دواړو زامنو قبر ته دعا اوکړه
او د هغوی د قبرونو نه یے موتے موتے خاوره را واخسته
او د هوا په لور یئے اوغورځوله ، نو هغه څه اووئیل ؟ »
د باورچی دے خبرے زه راولړزولم او هغه ته م اووئیل
چه اودا یه کته څه یئے اووئیل ؟ هغه جواب راکړ : « مشالے
وئیل » رور ګله ! خدا یئے د ددے زړے لویتے دخرابیدو
نه مخکښے وطن ته خیر کړی . ارمان چه ستا په سر م د

وادهٔ پکښې اونه لیدے شوه ، نوکه زرینه ژوندئ وه ، نو دلته به یځ راولم ، سور شال به ستا په قبر واچوی."

او بوډا اووئیل :" زامنو ! مرګ ته پید ا وئ اود مرګ په لار لاړئ ، زمونږ د پلرونو دغه لار ده ، خو ویاړ په دے خبره دے چه په ننګ ژوندئ وی او په ننګ مړه شوئ ، دغه پښتو ده او دغه ننګ دے . خدائے زمونږ دوطن ننګ ترسره کړه ، نودا هرڅه چه اوشول ، دا داسے شول لکه دا مو پلتے خاورے دهوا په مخ .

لیونئ باندے مور پلار ګلدستنه نوم ایښے دے او په رنګ،
جوړښه او قواره رښتیا چه ګلدسته ده. خو دلته په لیونئ مشهوره
ده. لیونئ نه ده، دومره ترخه ده چه په لږ څه خبره ځان
داسے غصه او ببر کړی چه لیونئ شی. ترخه هم نه ده په خبرو
او خوئ دومره خوږه ده چه چا سره خبرے کوی، نو هغه ئے
په مجلس نه مړیږی. خو چه د چا په کږه سترګه پوه شی، نو
بیا دومره ترخه شی چه څه ورسره وی ټول اوغورځوی، د ترخ
نه چاړه را اوباسی او که دریم ګړے مینځ ته نشي نو د سړی
کولمے یه دبړان کړی. چاړه هم ورسره داسے هسے نه ده،
دا وائی چه "د پیغلے حیاء یا رور یا میړه ساتی یا ښه زبر د سته
وسله." نو ما سره نه دلته رور شته، نه میړه، نو ځکه دا چاړه
ساتم او تشه ئے ساتی او راوباسی ئے هم نه یو سړے ئے پرے
داسے وهلے و چه هغه خود مرګ نه بچ دے، خو د زخم ته

تیغ نشی ګرځیدے او د هغے یو ګوزار د دے چاړه هم آزاده کړه او خلک یې هم داسے اویرول چه څوک ورسره د ویرے بے ځایه خبره نشی کولے او دا خبره داسے وه چه دیوو ډیرو (سند هے جاګیر دار) منشی ورته دومره اوویل چه کابلئ دربه در ولےګرځے . پښتو کے دِ پاے سروی ، ځیزونه خرڅوے ماسره چه شپه د آرام نوکری درکړم . دا په دے خبره غُصه شوه او هغه ته یې ویلو شروع کړه . کابلئ به دِ مور وی ، کابلئ به دِ خور وی ، کابلئ به دِ لور وی ، کابلئ به دِ ماندینه وی ، زه د بت خاک احمدزئ یم او او درینه چه نوکری درته اوښایم " د دے سره یې د ترخ (تخرګ) نه چاړه راوابسته او په هغه ورغوته شوه . هغه یې په تښتی کښے داسے اووهلو چه په هغه ځاے راپریوتو او دا خلکو اونیوله . لویه لانجه جوړه شوه . هلته پولیس کښے یو یوسفزے پښتون افسر و هغه د دے کیس لاس کښے واخستو . او آخر نتیجه دا شوه چه هغه منشی ځان ملامته اوګڼړولو ، عدالت دا آزاده پریښوه او هغه پښتون افسر دے ته کاغذ (حکم یا پرمټ) ورکړے دے په هغے پرمټ د دے چاړه آزاده ده ، هر وخت یې د ځان سره ګرځوی . دا خبره په ښار کښے دومره مشهوره شوه چه کابلئ سوداګره لیونئ مهاجره شوه هرکورته چه لاړه شی هغوئ

بې قدر عزت کوي ، سودا هم ترے اخلي او هيڅوک ورته
څه وئيلے نشي. البته اوس دا هم بلده شوه او د ښار خلق
هم بلد شول . نو کله نا کله چه يئ څوک تنکوي ، نو آواز ورکړي
"کابلئ! " او دا غصه شي ، ليونئ شي او ورته بد رد او وايي.
دا سندهيان په دے خبره بنيو هېبړي چه دا په" کابلي " نوم ولے
بد کنړي او ولے ليونئ شي. خو دومره اوس ټول واقف خلک
په دے پوهه شول چه هر مهاجر افغان ته کابلے نه وايي. دا د کلد ستے
د ليونتوب برکت دے.

زه چه دينن ش کاله پس سکهر (سندهـ) ته د سياسي جلسے
د پاره لاړم نو ومې ليدل چه سکهر ډير بدل شوے دے. ولے
بيا هم چه د سرک چوک ته اوړسېدم ، نو پوهه شوم چه دا کوم ځاے
دے . د ښار په قيله نمرخاته او لار کودرم سے راغلو او
د دے سره را ياد شول چه دا مخامخ کوڅه د صوفي شرف خان
کور او کارخانے ته تلے ده . په زړه م هغه را او وريدو . د
هغه دا او سيدو د بالاخانے لاندے هغه کيراج را ته را ياد شو
چه پکښے د رنګ ډير زاړه نوي ډبلي او د کارخانے اوزار او سامان
ډېرے ډېرے او امبار امبار پراته وو. يو جولئ غوندے کټ
کښيے به زه پروت وم. په رنګ روغن ککړ ټول (ميز) به م چاے
ږوږئ کوئ ل . او په دے خسته حال کيراج کښے به ماسره د شيخ اياز

(د سندهي ژبې د نن دور اول لوړ قومي شاعر) او حسن حميد ی (د اردو ژبې ممتاز ترقي پسند شاعر) ته واخلې د سندهـ صوبې او سکهـ سنارېئ سياستدانان، اديبان، وکيلان، پروفيسران، معتبران راجمع کېدل. زه به چه کله د سندهـ په دوره وم، نو دلته به خوامخواه راتلم او دوه درې شپې به م په دې خپل خدا يئ خدمتګار کليوال مشرف خان کولې، چه دلته په صوفي مشهور دے او د موټرو او ګاډو مستري او رنګ ساز و.

دلته ما خپلو ملګرو ته اووئيل چه ما ته خپل عزيز صوفي سبب او د هغه کيراج را ياد شو. زه ورځم چه هغه ځاے اووينم او يادونه تازه کړم. هغوئي را ته اووئيل "هغه خو وفات شوے دے، په کلي کښې ښخ دے او ټول تېر يئ دلته نه تللي دے." ما ورته اووئيل "دا هرڅه ما ته معلوم دي، خو زه هغه ځاے ګورم". د دے وينا سره موږ هغه ځاے ته روان شو هلته څه ګورم چه يوه افغان مهاجر ديو کوډ نه را ووتاه او په بل ننوتله. ما چه ورته اوکتل نو د ښځې په سر پټلهو کے د يوه جولانګډ بيځ يو ترخ ته بله بل ترخ ته اچولے ده او په دواړو لاسونو کښې يې د ماشومانو دلوبو څيزونه دي او ګرندۍ ګړندۍ ګرځي. ما چه دهغې دا حالت اوليدو، نو سوال راسره پېدا شو چه دسے تپوس او کړم چه دا څوک ده؟ هغه خو به يو

کورنوتله، خو زما ملګرو ماته اوویل چه دا لیونئ دے. ورسره دښځو دزیب زینت او د ماشومانو دلوبو سامان وی او کور په کور ګرځی دا سامان خرڅوی. په دے معلوماتو م نوره هم تلوسه سوا سوه چه د دے مهاجر سے نور احوال معلوم کړم.

د ماد صوفی صاحب د کور مخکښے ملګرو ته د صوفی صیب خدائی خدمتګاری او بهادری خبرے کولے، بیا م دعا کوله، په دے کښے دا لیونئ زمونږ خواته راغله، چه مونږ یئ اولید لسو نو زمونږ ته لږه په څنګ او دریده او مونږ ته کوری. چه زما ورته پام شو، نو آواز م پرے اوکړو چه «لورے!» هغے جواب راکړو چه «هس بابا». ما ورته اوویل «شا بسے بها درے» هغے چه دا واورید ل نو مونږ ته رانژدے شوه او ماته یئ اوویل «ته فلانکے بابا نه یئ؟» ما ورته اوویل «لورے! یم.» خو ته راته دا اووایه چه نور افغانان مهاجر خو اکثر ماته ځان نه ښایی، ته ولے ما باند ے ځان پیژنے، او ما څنګه پیژنے»

هغے اوویل «دهرچا خپله پښتو ده، زه هم چاته خپل پوره ځان نه ښایم، بس دغه لیونئ، سوداګره مهاجره یم. خو ستا نه ولے ځان پټ کړم، چه ته م اولید ے، نو خپل پلار رونږه، کور کلے او هغه باغ را یاد شو چه ته یکښے زمونږ کلی کښے زما د پلار میلمه وے. نو تاسره م زړه خبرو کولو ته اوشو

او زه ستانه ځان ولې پټ کړم، نه درنه څه غواړم، نه حاجت لرم، نه غله يم نه د غلو مله يم، سحر نه تر ماښامه خپله مزدوري کوم. ناجوړه مور، بوډۍ ترور ته روزي پيدا کوم، سوچه احمدزی يم. د پلار نيکه او خوږې مورت او پښتو ساتم، سر مې هسک ستر ګې مې پورته، مېچې مې کلکې دي. دلته ما درې د خوږې خبرې واخسته او ورته مې او وئيل ستا خبرو په ما ډير اثر وکړو، زه دې ډېر خفه کړم، که ته نه خفه کيږې نو ماته به خپل حال اووايې. زه هم ستا بابا يم، ماسره هم د هغه سيلاب غم دې چه په هيواد راغلے دے، نور خو به څه کولے شو يا به اوکړو يانه خو حال احوال خو معلوم کړو. هغې اووئيل زما بابايه، زما پلار ګران وے، په موږ ګران يې، زما د ګروال رور استاد وے. نور يې هم څه وئيل خو د ليونۍ خوله غموږو، دردونو او يو دوښو بنده کړه. زه ورنزدې شوم، په سر مې ورته لکه د پلار مينه لاس کيښو، تندے مې يې ښکل کړو او دومره مې اوليدل زما ملګرو هم اوليدل چه د ليونۍ د توروستر ګو نه په ګلابي مخ يو څو غټے غټے اوښکې روانې وے.

څوک چه د سکهر ښار کښې د ليونۍ د بهادرۍ، کلکوالي او سنګين توب نه خبر وو، هغوئ به وئيل چه دا څه لوبه ده، دا بلا ليونۍ چه فولادي اعصاب او د زمر کټۍ زړه لرې او خلکو ترا وسه د هغې

په سترګو کښې دهور بخری لیدلی دی. نن په اننګو دا اوښکې څنګه
راغلې؟ ولې چه څوک په دے پوهیدلے شي چه دخوږو وختونو
ترخو یادونو، د مورنیماو پلارنې مینې د زور او دعقیدت او اخلاص
دتعلقات دژورتیا د جذباتو جوش او تاؤ څومره زور دے کوم چه
ددے هرڅه نه یوځاے په پردی وطن کښې دیوبل په لیدو پیدا کیږي.
نو هغوی وئیلے شي چه دا اوښکې دکمزورئ نه وے دپټ اوننګ
دیادو وے. مالیونئ ته اووئیل چه ورورے! ته هر ځا ـــے
اوسیږے نو زه به ستا دمور او ترور لیدو ته نن ماښام م
هاته درځم." هلته یو ملګری اووئیل چه هاته ددوی کوټه
معلومه ده. دوئ د معصوم صاحب د منارے سره نژدے
اوسیږی. لیونئ چه دا واوریدل نو په خولمیئ هیڅ اونه وئیلے
شول او سر یئ اوخوځولو معنے یئ داوه چه ښه ده راشه."

زه چه دخپلې پارټئ د پروګرامونو نه ماښام فارغ شوم، نو
کوم ملګری ته چه دهغوئ کور معلوم وو، هغه راسره شو، د
لیونئ کوټے ته ورغلو.

داډیر سندهی معتبره دبنګلے لوے بلډنګ سره دهغوئ د
موټر او درولو ځاے ګیراج وو، بل ورسره جوخت یو زوړ مکان
وو لکه چه داسونو طویله یا دڅاروو غوجل وه، اوس دا
دواړه ځایونه خالي وو. په ګیراج کښې په زمکه دریځ او دګورو

دپا نړو پوځي غوړيدلي وو. دليونۍ د مور او تړور او ددې د اوسيدو ځای و او وروپورې بل ځای کښې ددې ماما دهغه سنجګه او ماشومان اوسيدل. سندهی ددوی نه کوا یه نه اخسته خو ددوی او د ماما کور هلته اوسيدل دهغه دکور دحفاظت ضمانت و، نو هغه خوشحال و.

ليونۍ په دې مسافرۍ او خپلی دريه درحالت کښې چپا ځې پخکړې وې، د بازار نه يې حلوا او ميوه راوړې وه. ماما او دهغه کړه او ماشومان يې هم راجع کړی وو. ماما يې زما پيژندګلوی وو. په پښتنی تجارتی بانک کښې نوکر و او ماسره يې تګ راتګ هم و. چې مونږ وراغلو، نو لو اول په زړه ياد و نو او نوی مصيبتونو غمرازی او همدردی وغيره خبرې اوزړه خواله اوکړه، بيا حال احوال بيان شو.

ددوی د مصيبت او عذاب قيصه اوږده ده. مختصر داسې وه چې ددې د پلار په کابل کښې جائيداد و او کاروبار کښې شراکت وو. سنه دعزت خوشحال ژوند يې و. يو رور يې فوځ کښې و، بل د آزاد قبائلو آفريد و شينوارو سره شريک تجارت کولو او ماما يې بينک کښې نوکر و. په کلی کښې يې زمکې، باغونه، فصلونه او کورونه وو دهغې آمده نوره کټه او اضافه وو. د اعليحضرت ظاهرشاه تر دوری يې د دربار

سره سبه تعلق او تعارف و ، داؤد خان ئے هم قدر منزلت او
دوستی کوله ، دهغوئ نه پس هم په عزت اوسیدل .
دلیونئ دواړه رونړه حزبیان وو ، خو یو د حزب دیـو
فریکشن غړے وو ، بل د بل . دواړه د داؤد خان دسقوط
نه پس معتبر اوخوشحال وو . ماما یے دد ے دواړو نه باهر
دبلے پارټئ سره رابطه لرله . دغه دوئ لویه کورنئ په
بیلو بیلو سیاسی جماعتونو کښے برخه لرله . خو ټول د کلی کلولئ
خیل او علاقے په معامله کښے متفق او سبه مضبوط وو او د دوئ
کور د مشرئ مقام لرلو .

یوه ورځ د دوئ دکلی او قلاع سره نژدے په لاره د
روسیانو قوا ( فـوج ) ټینکونو ، توپے ، ذره دار او نور جنګی
مشینونه تیریدل . دا لویه لاره وه ، نو اکثر به په دے دغه
شان تګ راتګ کیدو او دوئ به په کلی کور کښے په آرا م
او امن ناست وو . په دغه ورځ چه دا قوا تیره شوه ، نو
لږ وخت پس ترِ نه یو دوه ټینکونه ، ذره دار او نور راواپس
شو ، ددوئ قلاع او کور ته مخامخ اودریدل او دوئ یے
د توپے ډزرے او کړے ، قلاع او کور یے ورته او ویشتو او رنګ
یے کړل . ددوئ دکورنئ زنانه ، ماشومان ، بوډاګان اکثر
کسان او وژلے شول او یو تعداد او تښتیدل په شا وخوا باغونو

کندو کپرو، غونډېږي څه او څه کښې پټ شول. روسیانو او نورو فوځیانو تالاشی وکړه. هغوی ته جاسوس ویلي وو چه دے کور کښې «اشرار» دي او د هغوئ د وسلو ډېپو دے. ولے چه دوی کلې، قلاع او کور کوټ کوټ او کتل د «اشرارو» هیڅ نخښنه پکښې پیدا نه شوه. ولے د روسیانو او «انقلابي فوځیانو» عملیات او شول کامیاب عملیات»

خبره داسے وه چه دوئي د حکومت مخالف نه وو. د اشرارو سره یې لاره او صلاح هم نه وه. ولے په دے د تنظیمونو د لښکر لاره وه، نو کله ناکله به په دوئي میلمانه شول. دا یوه داسے بهانه وه چه د دوئي د کورنۍ تربورانو، رقیبانو دښمنانو او د دوئي سره د حزبي افسر د مخالفت په بنیاد هغوی ته موقع په لاس ورغله او هغوی د روسي افسرانو غوږ ته دا خبره اورسوله چه دلته د اشرارو ډلوکیمپ دے، نو هغوئي په دوی حمله او کړه.

" د تبر لاستے که د خپله ځانه، نه دے - نو تبرګی به له ما څه غوښتل معنه"

د انقلاب په نامه د انقلابي په جامه کښې مونږ داسے کارونه اوکړل چه هم موخپل کور ونه وران کړل، هم مو روسیانو ته د بدناموسۍ پټکی په سر کړل، هم مو خپل مخونه تور کړل هم مو افغانستان په وینو اولمبولو، دا هرڅه او شول ولے

کاش چه اوس هم دده نه سبق واخلو .

دلیونۍ پلار د نورو عزیزانو سره اوواړلے شو. "دعملیاتو" په دریمه ورځ دده کلی، قلاع او کور ټول دمرګ نه باتے روغ او ژوندی، نرسنځے او ماشومان ټول راووتل او ځان یې پاکستان ته راورسولو. هرڅوک د خپلو عزیزانو او پیژندګلو مهاجرینو تنظیمونو او کیمپونو ته اورسیدل. لیونۍ دده یو رور یو ماشوم ورارہ، ماما، دماما رور، د ماما ځامن او دوه د کاکا ځامن د خپلو دوستانو او عزیزانو په وینا نیغ کراچۍ ته اورسیدل او په سیراب ګوټ کښے نورو زرو افغانانو او نوی مهاجرینو سره یې اوسیدل شروع کړل. رو رو یې کاروبار ته هم لاس واچولو او ژوندیے ښه کیدو ته روان شو. دا سهراب ګوټ دغه ورځو کښے دهرقسم مال او خارجی کالو او سامان د تجارت لوے مرکز و. دحکومت هم ور ته پام شو چه دلته افغانان میشته کیږی، قوت کیږی او په بازار خوریږی. نو دپاکستان حکومت په سهراب ګوټ اپریشن (عملیات) اوکړل. دلیونۍ کور چه دکابل دعملیاتو باران نه راښتیدلے وو په کراچۍ کښے د سهراب ګوټ داپریشن دیرنالے (رناوے) لاندے راغلل. نور افغانان او مهاجر خو اکثر کراچۍ کښے خوا اوشا آبادیو ته لاړل او د وئ دیو واقف افغانی مهاجر

په بلنه سکهر ته راغلل او دا کورنۍ چه څه دمرګ نه بچ شوې وه دلته راورسیدل . اوس دلیونۍ ماما د سکهر بازار کښې کله په ډیره سبزی خرڅوی ، کله څه بل کالی او کله په تخته ناست ده میوه دانه خرڅوی ، ګوزاره کوی . دلیونۍ مور دروسی قواو په ډزو زخمی شوې وه او په سهراب ګوټ کښې د زهرو په لوګی ړنده شوه او تروریې ضعیفه او بوډۍ ده ، دکار کسب نه وه ، لیونۍ دواړه ساتلې .

ما د هغوی سره د هغوی دلیونۍ دَ خوارۍ زارۍ په پیسو جوړ شوې چای او شنبکلې او میوه او خوړه او د دوئ هغه وطن کښې پاتې باغ د میوو دونو د لاندې د ګلونو د بوټو حوا کښې په رنګدارو صوفو او چوکو ناسته ، دکابل د سندرغاړو د پښتونستان د سندرې ، د باچا خان ترانې او د هغه علاقې د سوو سپین ږیرو او ښکلو زلمو اتڼونه او د میلمستیا هغه جشن او میله م یادوله چه د لیونۍ پلار زمونږ دپاره کړې وه . نو زه وټیلے شم چه زما په مغزو او زړه څه تیریدل او زما په ټول بدن په یخ ژمی نرۍ نرۍ خولې ولې راتلې د دوئ په حالت او که په خپله خو د دوئ میلمستیا م په ظاهره په خوند خوند خوړه ، ځکه چه په دې لیونۍ ګلدسته خوشحالیږي .

په وینو لړلې او هور سوی خپل افغانستان چه دوران کوو

او ویجاړے او لتاړے خیلخانے نه لرے دپاکستان د سکهر په
یو داسے غوجل کښے چه د دوئ د پلار نیکه اسونه او خرونه پکښے
هم هغوی تړل نه ، د ګجورو د پانړو په شلیدلی بوزی
ناسته ده . د سندهیانو په کورو نو کښے در په در ګرځیدلے،
د سنځو، ماشومانو د پاره سامانونه او کالی یے سحر نه تر ماښامه
خرڅ کړی په هغے یے دوه پیسے ګټلی دی ، په هغے یے چاے
پخے کړی او میوه یے رانیولے ده او خپل میلمه ته یے د خیرات
په کور کښے وړاندے ایښی دی .

دا سوچه احمدزئ لیونئ د غمیدلی ، دردیدلی او ځوریدلی
مسافرئ د ژوند په هور کښے نن د مور او پلار د پښتنی وینے
او افغانی ننګ په رښتیا ګلدسته سنګاری ، ځکه چه هغه بابا ته
یے د غربت اخلاص په زوړ ترماس کښے د ملی رود ولئ د
مینے چاے ایښی دی کوم ته به چه د دے پلار د جاپان په
نوی عصری ښایسته لوښو کښے د چرګانو ، ګډانو او مرغانو
کباب کیښنودو . ولے بابا یے په خپلو زخمی احساساتو او ژوبل
جذباتو دا د ننګ ګلدسته نه پوهیدلے شی نه پوهیدل غواړی
کوم چه د ده غیرت ، ننګ ، پښتو او ملی احساس ژوبل کوی
او دا چاے او میوے په هغے لکه د ملاګے لګی .

سوچه احمدزئ ترچه نن په دے میلمستیا کښے بابا ګلدسته

او وئيل ، نو هغه موسکئ شوه او وې وئيل نه بابا ليونئ .
په ليونتوب وياړي ، ځکه چه ليونتوب دې د فخر او ناموس
هغه قلا ده چه دې د ښايسته پيغلتوب ګلدستې ته د هر
سپيره باد نه محفوظ او تازه ساتلې ده ، خو بابا ورته وليګلدسته
او نه وايئ چه دے ته پلار او مور په ګلالئ افغانستان کښے په
مينه ګلدسته وئيل او نن د شګلوړی سنده د سکهر په دوړنو
کوروڼو او ګلو کوڅو کښے په خپلو زړو چا موکښے نوی ښکلی د حسن
ګلدسته سنګاری . دا هے ګلدسته چه زمانے په راز راز اوړول
ړول او ځئپـلـه خو دې د ښايست پلوشه او د حياء لمنه لکه د
صبا ستوری روښانه ده ، هم لکه د شفق د لمنے صفا ده ، هم
لکه داوو سمندر روبز د ملغلرو پاکه ده . ګلدسته - ليونئ ،
سچيه احمدزئ - پيغله پښتنه ، د ننګ ډکه افغان مهاجره .
اسمان به ډيرې لوبے کړے وی او ډيرې لوبے به اوکړی ، د افغان په ننګ به هم بلوسيدلے
وی او اوبه بلوسی ، خو اے شيرشاه ! اے روښانه ! اے خوشحاله ! اے ميرويس
اے احمد شاه او اے بلچاخان او اے ! اے ! اے ! ! !
تاسو څه وايئ چه که رښتيا افغان وو - رښتيا افغان دے او رښتيا افغان وی ، نو اسمان به
څه اوکړی ؟ او څه به اوکړی .

که اسمان دے د زمری په خوله کښے ورکړی

د زمری په خوله کښے مے پریږده همت

خوشحال بابا

نه به دې تخیلاتو او جذباتو کښې ډوب وم، پوهه نه شوم چه څه م او څوړل او څښکل او څه نا. په دې کښې زما ملګرې ګټې ته او کتل او مانه یې او وئیل چه د جلسې نا وخته کیږي. نو د لیونۍ د کور نه راپا څیدو، چه راپا څیدو نو لیونۍ ته م او وئیل: «ګلدستې! کابل ته به ځو؟» هغې او وئیل: «هو بابا! چه کابل، کابل شي، ننګرهار د ګلوهار شي، کابل د ګلو ګل شي او قندهار د قند انار».

۱۸/۲/۹۶

# قوماندان صیب

زه چه خپله حجره کښې ناست یم ، نو د څه مودې راسې کله نا
کله د لته یو سړے راشی ،چه ښه ښکلے قواره یې وی ، په مخ یې
مزېداره ږیره وی ، په سر یې ښه تاؤ کړے پټکے وی ، پا که سوتره
خوږې ډوله جامې یې آغوستی وی ، په پښو یې ډیلا سټک چپل
وی چه راشی نو په هغوله ناسته جمع سلام واچوی بیا ما ته
رانزدے شی ، دوا ړه لاس را کړی ، بیا یې په سینه دادب و تعظیم
دپاره کیږدی او په شا شا روستو لاړ شی . د هغو لو کتو نو نه
په ځنګ یو کټ کښې کښینی ، زمونږ خبرے اوری ، خپله څه نه وایی.
فکرونو کښې ډوب وی ، څه لحظه شیبه د غه شان ناست وی ،
بیا را پاځی ، راشی ما ته دواړه لاس را کړی ، بیا دواړه لاس
تندی ته یوسی او روغونډے په سینه اونیسی او غلے غونډے
واپس لاړ شی ، مخامخ بازار ته کوز شی او ځی زمونږ نه بېنا ،
شي.

زما چه ډېر سړی نه پام شو او فکر راسره پیدا شو چه داسړی څوک دے ؟ د څه د پاره راغی ؟ او څه وائی ولے نه ؟ دده په کړو وړو نورو قدر پوهیږم چه څوک افغان مهاجر دے ، ماسره پیژنی ، خوزه یے پیژنم نه او دے راته ځان نه ښائی ، چه دا څه چل دے ؟ او څه راز دے ؟

چه څو ځله مې ورته ښه اوکتل ، نو ستر ګے یے را باندے خوږے لګیدلے ، د پوزے ملا او د وروځو محراب یے راته اشنا ښکاریږی . زما مغزو او حافظے هر ځل ډیر زور اولګولو خو دده پیژندګلی یے اونه کړے شوه . کنهے او لوئے ږیرے یے ترا ننګو پورے دده څهره نیولے وه او زما دستر ګو او حافظے نه یے دده تعارف پټ کړے وو .

ما زړه کښے اووئیل چه تر څو درته دے ځان نه ښائی نو نو ته هم ورسره ته مه چیړه ، نو هر ځل به چه دے څنګه راغلو هغه شان به لاړو ، ولے دا ځل چه راغے او زما خواکښے "وحدت" اخبار پروت و ، هغه یے وا خستو ، او بیا لاړو په ور ایشته کښے کښیناستو ، هغه یے کتلو او چه ما ورته په غور دلرے نه اوکتل ، نو دا اخبار د خبرونو مخ یے نه کتو ، په ادبی صفحه مشغول .و ، نو دے زړه راته اووئیل چه سړے درته رو رو ځان رانزدے کوی ، خو څه چل دے چه په ډاګه کیږی نه .

نو ما هم ځان دده نه لا پروا کړو . البته چه دے باخبیدوا و
لاړو ، نو مجره کښې ناستو ملګرو ته م اووئیل چه ایره داسې
ښو یه ښو یمه راشی ، څه او نه وا یئ او لاړ شی ، ماته ښوک
بلد افغان ښکاری ، چه دا ښوک دے؟ زما د سوال په جواب
کښې ماته ملګرو اووئیل " دا ښوک کابلے دے ، دلته د رَ ک
کیمپ ته اوس اوس راغلے دے ، چه کلی ته راکوزشی ، نو دغه
کابلی بازار کښې کله یو کابلی سره کله بل کابلی سره ناست وی ،
یو اووئیل " عجیبه سړے دے ، تیرو ورځو کښې د میوو دکانو
سره ولاړ و ، یو بل کابلی ورته اووئیل " قوماندان صیب څنګه
یئ؟ ، نو دے ورته په غصه شو ، ورته یئ اووئیل ورک کړه
قوماندان ، ماته قوماندان صیب مه وایه . که بیا دِ راته د قوماندان
سپیره نامه واخسته ، نو زه به هم خفه شم او تا به هم خفه کړم "
زمونږ د مجرے بل ملګری اووئیل " هو ، یه خوله غلے دے ، خو یه
خویئ ډیر تریخ دے . یوه ورځ ما د هغه اوچو میوو دُکاندار
شیخ نه بادام اخستل ، نو دے ورسره ناست و ، د یو بل مهاجر سره
یئ خبره کوله ، هغه ورته رئیس صیب اووے ، نو دے پرے
را سُور شو ، چه ماته رئیس مه وایه "
ما چه دا خبرے واوریدے ، نو دده پسې ندوته لیوال شوم
او د ځان سره م فیصله اوکړه چه داسړے دا ځل راشی ، نو

ضرور ترے معلومات کوُم ، دا ضرور څوک معتبر سړے دے او زما پېژندګلو دے . مونږ لا دا خبرے کولے چه د کیمپ یو مشر ملک بابا راغے او دراتلوسره یې ماته اووئیل چه نن مجلس ته نه یم راغلے، یو کار م راوړے دے ، هرڅنګه چه کیږی، ما سره به یا څیږے او دا کار به کوے "

چه مادکار تپوس او کړو ، نو ملک بابا راته اووئیل " بیګاه زمونږ د کیمپ دیره کورونو تالاشي وه ، دیر یو لیس راغلی وو، ډیر وخت یې تیر کړو ، خوڅه یې پیدا نکړل . البته زمونږ یو ډیر معزز سړے یې تانړے ته اوړے دے . هغه دا شپږمه میاشت ده راغلے دے دخیل کاکا سره دیره دے ، په کلی وطن کښے هم د ډیر عزتمند کور سړے دے ، خپله هم سپه قومی او رسمی سړے و ، دلته چه راغلے دے هم په چا غرض نه لری ، خپل مونځ او د س کوی او سحر او ماسپښین په جماعت کښے ماشومانو ته لیک لوست ښائی . پټول کورونه ترے خوشحال دی خدائے خبر ولے یې تانړے ته بوتلو . د کیمپ د اوو واړو قومونو مشران پرے خفه دی . سحر د مانځه نه پس مونږ مرکه کړے ده ، اوس به تاته مشران د هغه د خلاصون دپاره راځی . زه وړاندے راغلم چه تا خبر کړم ، چه ته ځان تیار کړے او جرګے ته سپور جواب ورنکړے . د هغوئي دراتلو نه مخکښے بایا تانړے ته لاړشو او دا سړے راولو . "

ما چه د ملک بابا خبرے واوریدے ، نو زړهٔ م تیلی نون ته لاس کړو او د تانړے نهٔ م ددے معاملے تپوس اوکړو. تانړه دار را ته اووئیل چه مونږ ته د برُو نه څه حکم راغلے و ، د هغے د تعمیل د پاره کیمپ ته ورغلی وو ، خو هیڅ مو پیدا نکړل ، هلته مو شپږ گنټے تیرے کړے ، چا غلط رپوټ ورکړے و . البته یو سړی مو څه شک راغلے دے ، هغه مو راوستے دے ،، ما د تانړه دار نه تپوس اوکړو ،، څه شک ؟ ،، سړے لکه د نورو مهاجرو نه ښکاری ، هیڅ ثبوت ورسره نشته چه څوک دے؟ پاکستان ته څنګه راغلے دے ، کیمپ ته چا راليږلے دے ، دلته څه کوی ، چه سوال جواب ورسره کوو ، نو ډیرے خبرے هم نه کوی ، صرف دا وائی چه خدائے راوستی ده ، راغلے یم ، د هغه گنهګار یم چه هر څه راسره کوئ اوکړئ - هم د بندیانو گنهګار یم ، هم د ملت گنهګار یم ، هم د خدائے گنهګار یم ،

ما تانړه دار ته اووئیل ،، بس دغومره خبره ده ،، هغه اووئیل ،، هو ، دغه خبره ده ،، ما ورته اووئیل که دغه خبره وی نو زهٔ یئے ضمانت کوم ، د کیمپ مشران درلیږم د هغوی ضمانت هم واخله او ورسره خپل خوړے درلیږم دا سړے راپریږدئ ،، تانړه دار اووئیل ،، مونږ هسے هم پریږدو ، خو د ده نه مو معلومات کول او خپله کار روائی هم پښائل غوښتو ،، د دے نه پس د

کیمپ مشران راغلل، ما دخپل خوږيئ سره یو دوه مشران اولیدل او سړے یئ د تانړے نه راوستو، ولے چه سړے راغلو نو زه حیران شوم او فکر هم واخستم، ځکه چه دا هم هغه سړے وو چه کله ناکله به زمونږ حجرے ته راتلو.

د دے واقعے نه پس ما سړے د ځان سره کښېنولو او ځان م پیړے پوهه کړو او تعلق مو تازه کړو. تازه دا سے چه دے په خُلم کښے علاقه دار وو، زه هلته د هغه ولایت ګورنر ملیه کړے وم. دے هلته علاقه دار وو، ماته یئ د ګپ شپ د یاره راتلے وو، ځکه چه د ده زما د شعر ونو سره مینه وه او د غیرت چغه ورته ډیره یاده وه، نو د هلته نه م اشنا شوے وو او بیا چه قره باغ کښے اولسوال شو بیا خو به ماته کابل ته ډیر تلو راتلو او د مینے نه به یئ میوه دانه، ښکار مار هم اکثر ماته راوړو.

اوس یئ ما سره مجلس شروع کړو، خو هر وخت به یئ خبرے لږے کولے او سوچ او فکر زیات. ښه خبر دار، پوهه او پوخ سړے وو، خو آخر یوه ورځ یه خبرو خبرو کښے دا سے ځائے ته اورسیدو چه په مغزو یئ څه چپه راغله، لکه چه لیونے شوے دے، خو دا سے لیونے چه خبره روغه وائي. د ده مختصره قیصه دا سے ده چه د سردار محمد داؤد خان د غورځېدو نه پس هم دے اولسوال پاتے شو، خو د ارام نوکری یئ په نصیب نه شوه، کله وردک

کله غزنې، کله لوګر، کله بامیان . دغه شان ولایت په ولایت
یې ګرځولو، خو ده هرځای خپله وظیفه ښه اجراء کوله .
چه روسیان راغلل نو بیا هم ده اولسوال پاتې شو . وطن کښې
هرخوا هورا ولګیدو، مرګ ژوبلې زور شوې . توپو، مشینونو،
هیلی کوپټرونو، بمبار جهازونو او سپکو او درنو وسلو دبنیادمو
دسرونو، کورونو، قلا ګانو، جماعتونو، فصلونو، باغونو، ژوند
او عزت تباهي او بربادی شروع کړه . دا هرڅه ده لیدل هم او اوریدل
هم، خو چه په ملت تیریدل هغه ده په زړه او ذهن تیرولا وخپله
خاوره ایره وظیفه یې کوله . چه وظیفه څه وه یا روسیانو او انقلابیانو
ته سلامونه، یا د ملت د تباهۍ تماشه . دې وایي چه د دې حالاتو
په لیدو ده خو ځله فیصله اوکړه چه د دې ظلمونو حکم ورکوونکی
افسر باندې د حملې پروګرام جوړ کړی . حمله پرې اوکړی یا هغه مړ
کړی یا دې شهید شی، ځکه چه پښتنی غیرت دداسې منظر تماشه نه شی
کولې او د داسې ژوند نه مرګ غوره ګنړی، خو بیا به یې فیصله
اوکړه چه داسې اول خو خودکشي ده، بیا به داسې حرکت زړه نه
یخیږی او فرض پوره نه اداء کیږی، نو خاموش به شو او د موقع
تلاش کښې به و وچه موقع په لاس راشی او د دې هرڅه بدل اخستل
شروع کړی .
دغه دوران کښې دې خبر شو چه روسیانو به یو کلی حمله اوکړه

د کلی نه چاپیر شول، کور-کور، قلا-قلا او جماعت جماعت یې یو
په یو تلاشی کړو، خو خلک د ویرې تښتیدلی وو او په کاریز کښې پټ
شوی وو، چه روسیانو ته پته اولګیده چه ټول خلک کاریز ته کوز
شوې دې، نو دوئ په کاریز کښې څه تیل څه بله څه واچول او هغې
ته یې هور ورته کړو، د اسې چه د یو سر نه واخلې تر بل سره ټول
کاریز د زهر د هور یوه لمبه شو او کاریز کښې چه څومره سړی،
ښځې، بوډا کان، ځوانان، ماشومان او هرڅه وو هغه یې اوسول.
چه د دې درد ناک افسوسناک واقعاتو نه خبر شو او د کاریز د ننه
سوځیدونکو او زوریدونکو چغې، فریاد، بیوسی او د ظالمانو وحشت
او تشدد او په هغې د سرې خوړې خندا ئې خیال ته راغله، نو هور پرې بل شو، نور یې
صبر تمام شو، او زمکه چاودیدې نه شوه چه د دې پرې ننوتې وې
اسمان او چت وچه دې ورختلې نه شو چه ورختلې وې او افغان
و ستر کې یې پټولې او د ا ظلم او زیاتې یې هیرولې نه شو، نو د
روسیانو خلاف یې د جهاد فیصله او کړه او هم په دې شپه یې
د یو تنظیم سره لاره پیدا کړه او د دوه ورځو د ننه د ننه یې خپله
خیلخانه د تنظیم په مدد پاکستان ته را ورسوله او ده د تنظیم سره
د روسیانو خلاف جهاد شروع کړو. ډیر وخت د بال بچ او خیلخانې
نه بې خبره او بې نیازه، د لوږې، تندې نه بې پروا جهاد کښې مصروف
وو. افغانستان کښې د اسې ځای، مورچه او حمله نه وه چه د دې ورغلې شوی

عن چه د آمو نه پورے لاړو او هلته یې د یو غر د سر نه دروسیانو په یو کلي راکټونه او ورول او زړه یې یخ کړو .

دے وایي چه روسیان لاړل ، نو تنظیمونه خوشحال شو چه روسیان یې اوشړل او دوئي میدان اوګټلو ، دے هم خوشحال شو چه اوس به حملے ، بمبارئ ، راکټونه ، ګوله باریئ ، محاصرے ، تالاشئ بے حیایئ ، بے شرمي ، قتلونه ، د کورونو سوځیدل ، په قلاع کانو ړزے په باغونو د هور لمبے ، په کلو د ورځے او شپے ورخنّل ، لوټل او شرمول او هرڅه به ختم شي . کلے او کور ، فصل او میوه ، باغ او پالیز ، کار او کسب ، دُکان او بازار ، جماعت او چوک ، مال ، دولت ، عزت او شرم وحیا به محفوظ شي ، امن به راشي ، د سخي جنډے ته ، به ټول افغانستان بے ویرے او بے خطرے روان وي ، دګل سرخ میلے به ګرمے شي او نور جشنونه او تماشے به راتازه شي .

د چاریکار په غونډئ به د ارغوان سیرو ګلونو او رنګینو خیمو ننداره بیا راشي ، پغمان به بیا ورځ او شپه د خلکو په سیل او میلو ، سازونو او ګډا ګانو او خوند او رنګ په دنیا د جنت نمونه شي . د کندهار د ولي بابا او ... سردي باغ به بیا هر مازیګر په مزو ، چړچو او یارانو په مجلسونو ګرما ګرمي وي . کندُز ، بغلان او بلخ کښے به بیا دیز کشي د مقابلو خوند رنګ او رونق پیدا شي ، کابل به ګل او ننګرهار به د ګلو هار شي . د غزني زیارتونه به په زاړینو د ک

شی. بامیان به د دُنیا د سیلانیانو باغچه شی. افغانستان به د ایشیا خندانه غُنچه شی، وطن به آباد او وطن وال به ښاد شی.

دے والئ چه د دے فکرو خیال سره د کابل د محاذ ونو نه خپل بال بچ ته د تګل کیمپ ته راغلم، د لته چه راغلم او څه وخت م د خپل ټبرا و اولاد سره تیر کړو او د ګُرمے نه تر کوهاټ او حیات آباد نه تر مانسهرے م کیمپونو کښے د وستان، عزیزان او ملګری اولیدل، بقول خوشحال وو چی "ګُل افغانستان" ته به په آبادئ او خوشحالئ لاړشو، شهیدانو ته به د ګلو ګیډ ی ړیوسو زوړاو ښار شوے افغانستان به ودان او ښاد ان کړو. خپل کورونه جماعتونه، باغونه او کار کسب به جوړ او سمبال کړو. د جنګ، فساد خون ریزئ او تباهئ زخمونو باندے به پاهے کیښوے شی. په بدیو او تربګنیو به ټیږه کیښودے شی. خوږ ه افغانی ورورولی او مــلی وطن واله به جوړه شی.

دے وائ چه د ه د پښتو نخوا او پاکستان په بعضو سیمو ګرځیدل او سیل کول زړه غوښتل او د خپلے خپلخانے سره یے څه موده په آرام او راحت تیرولو اراده وه چه د خپل تنظیم مشر ورپسے سوال جواب اوکړو او د ے یے د تنظیم مرکز ته او غوښتو هلته چه لاړ، نو د ه ته امروشو چه ته به بیا د یو بعضی په سرکښے افغانستان ته ځے او د روسیانو پس د هغوی ملګری کمونستان کافران

پاتے دی په هغوی به جهاد کوی . نو دے بیا افغانستان ته لاړ
خولکه چه ده فکر کوو چه د روسیانو د وتلو نه پس به ارام،
امن او ورور ولي ته څي، ولے بیا حملو، داړو، یرغلونو، شبخونو
جنګونو، راکټونو، بمونو، د وینو باران او دهور لمبو ته لاړو.
ده ته بیا بیا دافکر را وړاندے کیدو چه روسیان خو لاړل،
خو دا جنګ و فساد ورسره ولے لا نه ړو. ولے دا فکر به یې تاشا ته
کولو او چه تنظیم ورته وئیل نو جهاد یې کولو او کلی کورونه ویشتل،
سیځل، تباه کول، شومولئ بے حیائی کول هیڅ ته یې نه کتل.
یو ځل په یو کلی وراغلل، په یو کور ورا و ختل، وئیلے دا د روسیانو
د ملګری کور دے. هغه خیله کور نه و . د هغه بوړا پلار، بوډۍ
مور، مانډینه، دوه پیغلے خوبند ے، یو ماشوم زوئے او دوه ماشومانے
لونړے په کور وے . هغوئي د خدائے پاکه نامه اخسته، قرآن
شریف یې نیولو، د اسلام او افغانیت واسطے یې وړاندے کولے،
منت زاری یې کولے ، خو دوئي هیڅ ته نه کتل. په غیر انسانی ،
غیر افغانی او غیر اسلامی سلوک یې دسړو قتل، د ښځو بے شرمی او
بے حیائي، د ماشومانو وهل او زخمی کول او د کور مال متاع لوټ
کول او کړل او په دے عمل خوشحال، مست، کامیاب او کامران خپل
ځائے ته واپس شول.
دے وائي چه دلته ده سره سوال پیدا شو چه دا کوم عمل دے؟

که دکور میړه د روسیانو ملګري و، او هغه کور نشته، نو د کور ماشو ماڼو، بوډا ګانو، خورلڼو څه ګناه کړې وه، چه هغه مو ووهل او وژل او شرمول او لوټل، دا کوم عمل دے او کوم جهاد دے؟ خو دا مو هرڅه په ځان تیر کړل او ملګرو یې چه څه کول هغوئي یې نه منع کولے شول، نه یې ورته څه وئیلے شول.

البته د دے واقع نه پس په ټلي حمله کولو او کورونو ورختلو کار یې پریښو. څه وخت پس دے دلارے په سر خیل مرکز کښې ناست دے، د کابل د لورې د مهاجرو یوه قافله راغله چه اکثر پکښے ښځے، ماشو مان او بوډا ګان دی. څوک په خر سواره، څوک په قچر پراته، څوک په اوښ ناست، څوک چا ځوان په شا یا څټ را پورته کړے دے. اکثر زخمیان دی. او د ډیرو ناشونے خبره داوه چه د زنانه ؤ سینے پریکړے شوی دی، غوږ ونه او پوزے پریکړے شوی دی او داسے کسان مرګی حال ته نښتی او ځان چرته شفاخانے ته رسول غواړی.

دے وائي چه ما دا حال او کتو، نو خپلو مجاهدینو ملګرو ته م اووئیل چه یه مجاهدینو دا څه حال دے؟ دا د چا دلاسه؟ اوس خو روسیان نشته لاړل، دا څوک کوی؟ دا ولے کوی؟ دا زمونږ افغانی رونړه، خویندے، میندے، بلا ران، نیکه ګان او بچی ولے د ظلم، بربریت او وحشت په هور کښے سوځی؟

دا وګورئ دا بوډا ګان ، دا خور لنړے ، دا ماشومان و لے په داسے حال کښے شول . اوس چه روسیان لاړل ، نو اوس دا کوم جهاد پاتے شو ؟ دا جهاد ؟ دا جهاد ؟ "

دے وا یل چه زړه یے نور تهینګ نه کړے شو ، جذباتی شو ، د خولے یے چغه او د سترګو نه او سکه رو انه شوه او خپله د هشکه یے لرے او غورځوله او د د هشکے مرمی یے دانه دانه ګوزار ے کړے . د ملا کمر بند ، دوربین ، پیش قبضه ، هرڅه یے د ځان نه لرے کړه او د مجاهدینو په مخ یے اړتا ؤ کړل او دغه شان لکه د لیونو را روان شو او هغوئ ته یے او ویل : " تاسو زده ، ستاسو ایمان ، ستاسو جهاد ، ستاسو افغانیت او ستاسو اسلام او ستاسو کار زده ، زه خو دا دے درنه لاړم . د دے هرڅه نه م توبه ، توبه توبه ! د هغ نه م هم توبه ، د دے نه م هم توبه .

نن چه قوماندان صیب زمونږ حجره کښے ماسره تر دغه پورے خبره او کړه ، نو ډیر جذباتی شو ، کله وړه شو ، بے اختیاره شو ، کله به یے آسمان ته کتل ، کله زمکے ته ، کله به یے ښی لور ته مسلسل کتل کله کس لور ته . درنګ به درنګ یے په څهره سرخی تله راتله ، لاسونه یے مروړل او په پښے به یے زمکه وهله را وهله نو مونږ سره فکر شو چه به قوماندان صیب څه چل اوشو . آخر چه په دے حالت کښے م نور نه شو لیدے نو رم ورته اوویل :

«قوماندان صیب ! » دد ے الفاظو آورید وسره هغه په جوش کښې
پاڅیدو، څادر یې په اوږ و واچولو، داوینا یې دخولې راوتله
اوکړنډې روان شو « تاسو زده، ستاسو ایمان زده، ستاسو
جهاد زده، ستاسو اسلام زده او ستاسو کار زده. زه خو
دادے لاړم . دد ے هرڅه نه م توبه، توبه، توبه. دهغې نه
م هم توبه، دد ے نه م هم توبه. نه م د انقلابیانو رئیسی
پکار ده، نه م د مجاهدینو قوماندانی، ماته دخپل خوږ افغانستان
غریبی پکار ده، خواری پکار ده، ملی ژوند پکار دے.»
دا الفاظ یې بیا بیا ویئیل، او له ما لکه دلیونو پاڅیدو او لاړو.
لاړ، چرته لاړ. په دغه ورځ چه ماښام نمونځ ملګری
ماښام حجرے ته راغونډ شول، نو دا خبره کید له، چه هغه
چه دلته به راتلو، هغه کابلې دسړک په غاړه پیاده دنوښار
او پیښور په لوری روان .و، لیونے شوے و، په چغو چغو یې
ویئیل « دهغه م هم توبه، دد ے نه م هم توبه. نه م د انقلابیانو
رئیسی پکار ده، نه د مجاهدینو قوماندانی، زما د خپل خوږ اولوے
افغانستان غریبی پکار ده، خواری پکار ده، ملی ژوند، ملی ژوند....

○○○

# پهلوان (هزاره)

په بازار کښې نانبایان ډیر دی، خو د ټولو نه زیات کامیاب او مشهور پهلوان نانبائی دے، چه د هٔ تنور لګولے دے نو یو کال یې لا نه دے شوے، ولے په ډیره لږ موده کښې هم په بازار خور شو، هم د دے ښاریې د خلکو په زړونو. تر دے چه اوس حوا وښا لرلرې کلو او وړو ښاریو کښې غم ښادی وی نو د رونق آرډر دهٔ ته ورکوی. مشهوره داده چه دده ډوډئ درنه هم ده اوخوږه هم ده او د سحر د چایو سره دده نان خو مثال نه لری. خلکو کښې دا خبرے کیږی چه دده لاسو کښې برکت دے او خوږه دی، هر څه چه دی، خو حقه خبره داده چه خوږے خصلت، سوال جواب او کوزاروپے د خلکو سره ډیره ښه او اثری ده.

زه چه دهٔ د تنور په لاره تیریږم، نو په دهٔ هر وخت نظر کوږه وی. اول یې یو اځے د خپل یو زوئ سره کار شروع

کړو او یوه کشره غونډے لوربېئے ورسره پخو ډوډو ته ناسته وه. رو رو یې شاګردان یا نوکران زیاتیدل. اوس چه ورته ګورم نو ګنړ شول. یو اوه اغزی، بل پیړے جوړوی، بل د چینئ سره ناست ډوډئ په ترتیب ږدی او چه ګاک اوغواړی نو ډوډئ دے ورکړی او پیسے یے لور واخلی. خپله پهلوان ډوډئ په تنور لګوی، پخوی او رااخلی. د دکان په مخ یے په تخته غوړځوی. لګیا دے کله په تنور ورتیټ شی ډوډئ لګوی، کله ورغوپه شی په سیخ ډوډئ راواخلی. دغه شان مشقت کوی، خولے خولے وی او په دے کښے هم چه ګاک ته اوګوری نو په غونډه مخ یے نرئ سترګے، پینه (پی‌ته) پوزه، غټے ولاړ اننګی او ریشمی شونډے په مسکا رنګ شی اوچه څوک خوا کښے تیریږی په دهٔ غږ اوکړی یا سلام واچوی، نو دے د حلق ند وعلیکم سلام اووایی. یا "خان صیب" دعا کوئ"، "خوشحال اوسئ" اووایی سرښکته کړی اودواړه لاس په سینه کیږدی. ددے غریب د ډوډئ لګولو یا راخستلو نه پروته دا سلام کلمه هم اوس رو رو مشقت کیږی، ځکه چه ډیر کم مشران په دے لار داسے تیریږی چه په ده سلام اچول خوند نه ورکوی. دا ددهٔ سره مینه ده، دلسوزی ده، همدردی ده اوکه دده په دے نوی ډول ښکلی جُوسه، د زنے د پاسه یو لږ غونډے و بیښته

لیدل او په هغې مسکا کړېدل او دده په خپله عجیبه ژبه جواب ورکول دوئ ته خوند ورکوی . زما اندازه چه دواړه ځیزونه جمع شوی دی او دپهلوان سخصیت یې جاذب کړے دے .

ما چه کوم خبرے ته فکر وړی ، نو هغه دده دولس کلن زوی په سر داسے غونډه مونډه وړه غوندے رنګینوق پټی ده چه دده په کبرئ پرته وې نو سر یې پټ نه وی . او دده لس کلنی لور دتندی دپاسه دسر وینبته دپلوکی یا خټوکی په شان پرانه وی ، تورے لوپټے یې سر تر اوږے او نیم بدن ته وجود پټ کړے وی او ګلدار قمیص یې اچولے وی . هلک او جینئ دواړه دپلار غوندے هر وخت په غوړیدلی مخ داسے ښکاری لکه چه خاندی . ماته دچین دغه شان رنګ جڼے هلکان جینکئ رایادے کړے خو هغوئ ډیر تروتازه دی . په دے عمرکښے یې هم په یخ ژمی کښے اننګی داسے سره شی چه سته به وایئ وینے ترے راڅاخی . ولے دد ے هلک او جینئ څهره لکه چه د خوارئ زارئ او کړاک ایندارہ (آئینه) وی . او پلاسئے مشهور خو په پهلوان دے ، ولے وجود کښے یئے دپهلوانئ هیڅ نه دی پاتے ، غوښے یئے تو یئے شوی دی هډوکی یئے راوتلی دی او څرمن یئے ګونجے ګونجے او خپه پړه ده ،

البته هغه کوڅه یئ دروند او لکه د پلوسے د مونږ مضبوط سنګاري .

دے کښې شک نشته چه دوئ د افغانستان هزاره مهاجر دی ، خو ما اوریدلی وو چه هزاره مهاجر د افغانستان نه ایران ته تللی دی او څه لږ ډیر چه پاکستان ته راغلی دی ، هغوئ کوټه کښې د خپل قوم او عقیدے د خلکو سره پراته دی ، دا پهلوان دلته څنګه او ولے راغلے دے ؟

یو وخت چه په بازار کښې مونږ د هړتال اعلان اوکړو ، نو د ښارئ د دوکاند ارونه وړاندے مهاجرو دوکانونه بند کړل - فرق دا وو چه د کلی دوکانداران اکثر مونږ سره د حکومت خلاف جلوس کښې هم شامل شو او دا افغان مهاجر د خپلو بندو دوکانونو په مخکښې ناست یا ولاړ ، مونږ سره تعاون یا همدردی کوله . ولے پهلوان د خپلے لور او زوئے سره جلوس کښې هم روان وو او چه کوم ځائے به زه او د یار محمد نور مشران ولاړ وو ، هلته به نیغ ولاړ و ، موسکے موسکے به کیدو ، چه پولیس راغے جلوس یئ بند ولو او مونږ اوږ خلاصولو نو ورسره مقابله شوه . زمونږ ملګرو او د کلی خلقو د پولیس نه منل ، زنده باد ، مرده باد " چغو ته یئ ور ورکه او پولیس زور لګول ، د یکے ورکول ، آخر ډنډے (کوتک ، چلول او بالاخر ګیس استعمال کړو او خلک تس نس کیدل او بیا راغونډیدل

شروع شول ۔ چه زما پهلوان ته خیال شو، نو دے زمونږ شا ته
ولاړ دے . ما ورته اووئیل پهلوان څه کور ته لاړ شه ،
دلته پولیس د تلو او کیسونه را غلل ، ته د لته څه کوے ،
خوږ به شے ، لور او زوے به د وهل اوخوری ، تابه پولیس اونیسی»
هغه نه یوه کړه نه بله ، ما ته یې اووئیل « ولے زه پښتون نه دے
زما لور کئ یو لاس یې دلور په سر کیښو ، بل د زوے او وے وئیل
"بچی تاسو د اولاد نه یئ دی » دے جواب په ما ډیر تاثیر
اوکړو ، پوهه شوم چه هزاره دے خو پښتنو کښے د پښتو سره اوسیږی.
ما ورته اووئیل "شاباش ۔ شاباش » هغه موسکے شو او زر یې
جواب راکړو "نه ۔ نه شاباش نشته ۔ دا د موږ وظیفه دے »
ددے واقع نه پس پهلوان سره زما مینه او تعلق پیدا شو
او چه کله به موقع وه زه به د پهلوان تنور ته ورا غلم هغه سره به
کینا ستم او هغه به په ډیره مینه ما ته د قهوے چاینک راوغوښتو
ما ته به یې د هغې نه د خیل دوکان په بلغمی پیاله کښے چاے واچولے
وئیل به یې چه "خان قیوه په دا رازکې سره ډیرے مزے کوی.
دا ما پاره چینار کښے نیولے دے او شوق سره قیوه دے سرمخورم"
او خیله به یې د مخامخ پروت غټ چاجوش نه تورے ایشید لے
اوبه ، چه د ورته چاے وئیل په یو بے پرچه پیالئ کښے واچولے
او ماسره به یې یو ځاے چاے څښکلے او لور او زوے به یې هم کار

کوټلو او هم به يې ماته غلې غلې کتل .

پهلوان کيمپ کښې نه اوسيدلو ، باهر کلي کښې اوسيدو .
ماښام ناوخته به يې دوکان بند کړو او دے به کلي کښې خپل کور ته
لاړو ، خو چه رو رو يې ماسره تعلق پيدا شو ، نو بيا به چه زه
کلي ته راغلے وم ، نو دے به د ماسخوتن مانځه نه پس ماته راغلو
اکثر به ورسره زما د پاره څه شے وو او هغه به يې ماته راوړو .
اکثر به او چه غوښنه ، اوچ توتان ، اوچے خورمانړۍ ، وڅکے
چارمغز ( اکوړ يا غوزان ) کيږي يوه لپه قدر دده تحفه وه .

په دے دوران کښې ما دده د حال نه ځان خبر کړو ، چه
دے څوک دے او څنګه د لته رارسيدلے دے . دده خپل د
پلار نيکه کور باميان او چخچران تر مينځه يوه دره کښې و .
خو د خاندانی د ښمنۍ او غربت د وجې دوی کابل ته راغلل
او دلته دده پلار او بيا ده نانبائي توب کوټلو . په زوړ کابل
کښې يې کور و ، خو چه لږ پيسے ورسره او شوے نو د جادهٔ
ميوند سره نزدے يوه کلۍ کښې يې تنو رجوړ کړو . هغه پير
ښه او چليدو او ښه روان شو او د دوی ژوند ښهٔ شو . چه
روسی فوځونه افغانستان ته راغلل او په کابل پريوتل ، نو دده
د تنور او کور په علاقه کښې د زوړ کابل خلق راپاڅيدل . د
روسی فوځ خلاف يې حرکت او کړو ، مقابله اوشوه . آخر په

پوله علاقه او دغلته په بازار بمباری اوشوه ، سوونه افغانان شهیدان شول ، کورونه او دوکانونه تباه اوبرباد شو ، نتیجه کښې د زوړ ښار او خصوصًا ددغه علاقې خلق "اشرار" شول ، دکورراو ښار نه یا ځولے شول . څه دښار نه باهر بیا آباد شو ، څه دربه در شول . د پهلوان د دکان ،کور تباه وبرباد شو ، هیڅ شے ور سره پاتے نه شو او دے لاړو دشت برچي کښې دیره شو .

څه موده پس په دشت برچي جنګ راغے او بیا دشت برچي په کابل کوټه سنګی ، کارته چار او کارته سه وغیره حملے اوکړے او روسنو دشت برچي د جنګ میدان یا پُل شو او چه روسیان لاړل نوبیا خپلو کښې افغانانو کله یو ګروپ را څه کله بل ، کور په کور خونریزی ، لوټ مار ، بدناموسی او تباهي شروع شوے . دشت برچي نه کم ے اووتلے . ځوک یو خوا لاړل ځوک بل خوا . پهلوان د خپلے ژبے او عقیدے د خلقو قافله کښې ایران ته اورسید . په ایران کښې دمشهد نه باهر لرے بیدیا کښې د افغان مهاجرینو کیمپ کښې پریوتو . کیمپ کښې راحصار وو ، تنګ شول ، او غته خبره داوه چه افغان مهاجرینو سره یوشان سلوک نه کیدو . څنے خوشحال وو او څنے نه خوښیدل . څومیاشتے هلته وو ، ولے هغه ځاے خوند ورنکړو . هلته پهلوان ډیر تکلیف کښې و . یوه ورځ ورته یو خوشحال افغان مهاجر په راز دارۍ کښې ووئیل :

" پهلوانه! ته ډیر افغانستان - افغانستان، افغان افغان او افغان ملت افغان ملت مه کوه، کنی نو به عذاب به شې؟ دے خبرے ډیر خفه کړو او رښتیا چه ډیر به عذاب هم شو، خو څه یے کړی وے، مجبوری وه کیمپ کښے لکه دقیدی پروت و. آخر یو خوا دایران حکومت دوی افغانستان ته واپس کول شروع کړل، بل خوا دا افواه کانے هم شروع شوے چه اوس افغانستان کښے وخت تیر یدے شی او بل د دوی به افغانستان کښے مرګ خوښ و، خو نور ایران کښے ژوند نه بیزار وو. نو دوی واپس افغانستان ته راغلل او به پښو پښو لارو ډیر به تکلیف د وردګو جغتو ته راورسیدل. هلته یے به غرونو کښے څه ساه واخسته، خلکو چه څه اوبه دانه لرل هغه یے ورسره شریک کړل، خو هلته یرے بمباری اوشوه، مرګونه او ژوبلے تر اوشوے او دوی غزنی خوا ته لاړل. هلته نورو هزاره ګانو کوټټے ته د تګ فیصله اوکړه او پهلوان د لوګر د اوسیدونکو سره دے خواته راغے. لنډه دا چه د هلته نه یواځے دا هزاره د لوګر یښتنو سره پاکستان ته، پیښور ته به هجرت راروان شو او هلته نه قسمت دلته راورسول. د لته تر اوسه د تول بازار دوست او خور پهلوان نانبائی دے، د افغان مهاجرینو به شمیر کښے دے، خو ځان

د بازار، ښاریې او کلي دزړو هستوګنو ته زیات پښتون ګنړی او پښتو کوي. چه دچا فاتحه یا جنازه وي، نو پهلوان خیل تنور لور او زوسے ته پرېږدي، خپله ځان هغے ته اورسوي.

د پهلوان دخولے وینا زما په ژبه دا سے ده چه دده د خیل انغری اووه نفر وو، اوس پکښې شلور پاتے دي. دده دټبر پښتو[25] یشت کسان وو، اوس چه ده ته معلوم دي نو صرف درے کورنۍ کښې دي، یوه ښځه خاوند وایس کابل ښار ته تللي دي، د نورو څه اته پته نشته. دده چم ګونډ دکابل زوړ ښار کښې او دده عزیزولی په غزنی، بامیان، چخچران کښې هر خوا خوره وه، خو اوس هغه تس نس ده، صبا خدا ئے خبر چه څه کیږي. اوس خو دلته پښتانه عزیزان دي او دخوشحالۍ خبره ده چه دا سے زیست روزګار ورته کوي چه عزیزولی که هېریدے نشي هم هېره ده. خوشحال دے چه پښتونخوا ته راغلے دے.

ما ته دده دبازار خلکو دا خبره اوکړه چه تیرو ورځو کښې دده ګوانډي دوکاندار دده سره بوقه، مینه یا اراده وکړه ور ته یئے اووئیل " پهلوانه د الور بهرے زما زوے ته راکوے. ما ددے خبرے تپوس د پهلوان نه اوکړو، هغه پهلوان د تنور په خوا کښې په لړلوجامو کښې په ناستی یم دواړو

زنګونونو لاس کېښوول، را ټيټ شو، ما ته يې اوويل: «دا دې جلېځ د مور مور پښتون دے، که خداے ته منظور ده، افغانستان کښې لا چرته نشي خداے نه کړي دلته باقي ژوندي زه دوے وروام تې دې زما ورونړه دے لور زما دے الک (هلک) شي زما لور دې الک شي. دا چه خبر دے دا هم ازما وطن دے، زه هم پښتون دے، افغان دے الحمدلله.

پهلوان ډېر عجيبه سړے دے. د بازار خلک وائي چه دے جماعت کښې د جمعې (امام سره) مونځ اوکړي، نو بيا اودرېږي لاس پورته کړي او په اوچت آواز دوعا کوي: «الله پاک وطن ته خير کړي. ملت ته خير کړي. ګرد افغانستان ته خير کړي، جنګ او خونريزي ورک شي، افغانستان امن شي، آرام شي، افغان رور رور شي»

يوه ورځ د دُعا نه پس ترے چا تپوس اوکړو چه پهلوانه ته افغانستان دپاره دُعا کوے او خير ئې غواړے او خپل ځان بال بچ او کاروبار دپاره دُعا نه کوے.» وائي چه د جماعت خلکو په ټوله کښې هغه د اسے جواب ورکړو: «زه او زما بال بچ خداے پيدا کړي، د هغه مال دے که اخلي ئې که پرېږدي ئې، ولے د افغانستان ساتل او د د خيرغوښتل زما وظيفه ده. خداے دا وظيفه ما ته راکړے ده.

١٩/٢/٩٦

# داوړځ !

نن چه دکوهاټ په نوی سنار کښې د قموس ګل ختټک دکور دسباديُ په لړکښې هاته ورتلم ، نو دکور لاره راته نه وه معلومه . د یو دُکاندار سره اودريدو او دکور درک تپوس مو کړلو . په دے کښې ړم يو لنډ کلن هلک او نهه کلنے جينئ ته خيال شو . دا دور خوړ لګياوو هلته يئ زاړهٔ کاغذونه ، زاړه دبلې ټيمان ، زړے چپلے اوهدوکی په منډه منډه ټولول . د دور په شا يو ټيم (کنستر) تړلے وو ، هغے ته يئ غور ځول او د خور لاسوکښې يو زړه غونډه بوجئ (تيلئ) وه هغے کښےيئ اچول . ماچه ورته په غور وکتل چه دا څيزونه چه دوئ ټولوی ، نو دوئ دے ته نه ګوری چه څومره ګنده ، څومره زاړهٔ ، څومره بدبو یاں دی . خو چه نظريئ راشي، نو دور د خور نه مخکښے کيږی او خور د دور نه وړاندے کيږی ، راپورته کوی يئ او جمع کوی يئ او چه دے ماشومانو ته ګورم تو افغانی ملی زاړه ولے درانه کالی (لباس) يئ اغوستے دے ، هلک سرته

دے او د جینۍ یوسپوڼتے لنډکیږو (یوزړوکے) پہ سر دے. ددواړو دے خیرنو، زړو اوشلیدلو جامو ته چه گورم او د دوی څېرو ته گورم، نو د دے لنډۍ (مصرعے یا ټپه) پہ معنیٰ پوه شوم چه :

ځان یۓ زړو جامو کښے جوړ کړو
لکه پہ وران کلی کښے باغ د گلو وینه

ـــــــــ

گلالے حُسن پہ خاورو خټلو کښے او ابدالے ښائست پہ خړو ایرو کښے. نول او فکر کښے ډوب شوم. دوخت ناترسه لاس د دے ناشوني عمل ته سوچ او اندیښنو وا خستم، خوبیا دُکاندار درک راکړے وو او مونږ د واده کور ته رسیدلی وو.

زه د گلدارو قناتونو او د رنگینو سائبانونو سوری ته پہ دیښمینو صوفو کښیناستم. مخامخ راته دپلاسټک پہ سرو، شنو زیړو او آسمانی رنګ چوکو (کرسو) خټک مشران، کشران پہ صفا سوتره جامو کښے ناست دی. اخوا دیخوا ماشومان، هلکان ښځے د سپاله پټکی جامو او ډول ډول فیشن کښے اوړی راوړی. دپرډے شاته دکور دننه ښځو خپلے وطنی سندرے او ګداګانے شروع کړی، کله د قمر گلے او گلناربیګم کیسټونه شروع کړی. مخامخ رنګارنګی ده او شاته شرنګاشرنګی ده. دعزیزولۍ مینے دی د سیالانو سیالۍ دی او د واده دکور ډرنګ ډونګ او کړنګ کړونګ دے. یو اړخ ته دیګونه

باندې دې ورسره دګټ اوچرګ په غوښو او سبزیانو (سابه ګانو) کښې او وه اته قسمه پخلې کیږي . فیرنی او حلوا؛ تیاریږي، قسم قسم میوې په لوښو کښې کښښودل کیږي او د قورمو، پلاوونو او ترکارو خوانړه خوشبو مازغه ترکوي او لوږه زیاتوي. زه په دې تماشو کښې دهغه وختینو ورور خوړ د حالت او قسمت د لوږو خیال او تصوّر کښې ډوب یم .

چه لږ ساعت پس خوراکونه تیار شول او خوانچې د میلمنو مخې ته کیښوې شوې ، نو په یو میز یو بابا، یو زلمې او یو جینۍ ناست دی په خوند خوند نعمتو نه خوري . اتفاق ګوره چه دلته دا هلک جینۍ د فرنی په پلیټ وران شول . یو بل په میوو او د چرګانو په غوړو کښې سرو هڅوکو اوّلی راولی او ورسره ناست بوډا (نیکهٔ) او زلمې (پلار) یې منع کوی او هلته هغه مرورور خوړ را سبکاره شول او درا سبکارید و سره یې چه دیخوا دواړه بندوبست اولیدو، نو زړ د مخ نه تیر شول او حلت حلت لاهل بناه شول . چه ما اولیدل، نو ما ورپسې سرې اولیږل چه ورشی هغه ماشومان راولی ، ولې هغوئ را نغلل . نو بیا ورپسې زه پخپله پا حیڅدم ، څه ګورم چه هغوئ ددې ځلې نه دمنډې په قدم (ډیر تیز تیز) لرې رسیدلی وو. نو زه ورپسې موټر کښې سور مشوم چه راته ترې تم نشی، ور اورسیدم او دواړه

م اودرول، ورته وایم چه "ګلونو را شئ پلاؤ او خورئ"،
هغه خوږ د زړور سره جوخته شوه، ورور یې خان راغوښله
غوندے کړو او ووے وئیل " مونږ پردی واده کښے خوراک
نه کوو " ما ورته اووئیل "نه ګل م دا پردے نه دے، مونږ
او تاسو یو پښتانه یو، یو ټول خیل یو " هغه هلک زر جواب
راکړو " نه ماما! دلته مونږ ته کابلیان وائی او داکوهاټیان
دی " زه په دے جواب ګنګ شوم، حیران شوم چه اوس
دویئ ته څه جواب ورکړم اوڅه ورسره اوکړم. آخر هغوئ
اوګټله او ما بائیله. هغوی ماسره لاس نه ړل او په زړه ګنده
کاغذونو ماغذونو پټولو مشغول شول او زه واپس شوم،
د واده د خوړاکونو، خوشحالو او سپالو ځاے ته راغلم، چه زه
دهغو نه را روان شوم او روستو م کتل، نو هغوئ هم ما ته
کتل. ما خو زړه کښے د دوی په بده ورځ افسوس او په درونو
خوئ فخر محسوسولو، ولے نه پوهیدم چه هغوئ ما ته کتل
نو د خان سره یې ما ته کوم پیغور راکولو؟

زه لا د سائیان لاندے په صوفه کښے ناست نه وم، چه
دهغه انتظام یو خدمتی را ته راغے، درا تلو سره یې راته اووے
باباجانه! ته ما نه پیژنے، ولے زه تا د کابل نه پیژنم. شکر دے
چه ته خپل وطن ته راغلے او د خپل کور کلی او عزیز ولی خان شو

خوماته اوګوره ، په دے بزیره م مه غلطیږه ، سترګو او تندی
ته م اوګوره ، زه هغه د خورد . کابل هغه ستا خان یم چه میلے
به مو کولے ، دوطن نه راغلے یم او دلته د دے آشپز استا د سره
خدمتی یم ، پنځوس روپۍ ورځ راکوی . دهٔ دومره وشیلی وو
او د وینا سره ما پیژندلے وو . او د پیژندو سره اول یو بل ته غاړه
ورتو ، بیا مو حال احوال سره اوویلو .

هلته را ته اوویل چه ته دلته راغلے دا پټول خلک ستا
احترام او عزت ته پاڅیدل او ما ته اولیدے ، نو ستا نه پټ شوم
چه ته م په داسے ورځے او داسے حالت کښے اونه وینے . خو
چه تا هغه وروروخور ماشومانو پسے هڅه وکړه او هغوئ رانغلل
نو تا ته راغلم . ماوئیل خیر دے اوم پیژنه ، هرڅنګه چه
درته سیکارم سیکاره د شم او ته چه هرڅه کښے اوکنړه ، خو
یوه خبره درته کوم ، هغه دا چه که پښتون په هرڅومره مجبورئ
وطن پریږدی ، خو په هیڅ جبر او مصیبت کښے ننګ او پښتو نه
پریږدی . ما کتل چه تا په هغه ماشومانو رحم کولو او د لته
د رابلل او راوستل چه سبه خوراکونه اوخوری ، خو هغه د
پکتیا پښتنانهٔ بچی وو . هغوی به د وخت د جبر او د ظالم
دظلمونو دلاسه وطن پریښے وی ، ولے ننګ او پښتو یے نه ده
پریښے . هر دول پریوتی خواری او مزدوری به او کړی

خوشحال یه سبک نه کړی ، د چا لو ښیٔ او تښخر ته به یه کوزه سترګه
او نه ګوری ، مړ به شی ، خو د بے ننګئ پلاؤ به ترستو نی
تیر نکړی . که دا ماشو مان وو ، نو وو به ، خو رګونوکښے
یۓ وینه د میړنو مشرانو نیکانو او پلرونو ده . . . . » مایۓ
د خولے نه خبر وا خستله او ورته مِ اوویٔل ، نوره ټوله خبره
دِ یه ګُل بدله ، خو د وطن د پر ښیښود و خبره باندے دِ پوهه
نه شوم . آیا پکتیا ، کا بل یا افغانستان دِ وطن دے او کوهاټ ،
سوات ، پیښاور او کوئټه دِ وطن نه دے ؟ هغه مو سکے شو
بیا یۓ یو اوږد اسویلے او کړو ، بیا یۓ یو ځل بر آسمان ته ، بیا یۓ
مخامخ غرته او کتل ، بیا یۓ خپلو ښنبو ته کتل او یه ښنبو
زوږ پلا ستیکی چپل کښے یے د ښیٔ پښے ښنجه باندے یه زمکه
کرښے ا چول شروع کړلے او یه خوله یۓ هیڅ او نه ویٔل ، ولے چه ما
بیرے د غه سوال او کړو ، نو تش د و مره یۓ او ویٔل چه :
وطن . . . . هو . . . . وطن وو . . . . وطن . . . . وطن به
یۓ خدائے کړی . . . . او . . . . اوس . . . او س خو . . .
ته ماته او ګوره . . . ته . . . د دے واده عزتمند میلمه یے
او . . . . زه . . . . یو سپیره خدمتی . . . او یو اوږد اسویلے
یۓ او کړو ، بیا یۓ آسمان ته او کتل . . . بیا یۓ د سلیمان غرهٔ څوکے
ته او کتل . . . . بیا یۓ مخامخ غرهٔ د پاسه د پیرنګی جوړ شوی

کیپټن او کتل ... او د ه لا کتل چه اسپېن استاذ آواز ورکړو

« او کابلیه ! او کابلیه ! ته خدمت کوے که د لته مجلسونه کوے »

او هغه روان شو. ما ورته کتل ، هلته کښېناستو ـــ او په خوراکونو

لړلی لوښی چه د خوراک د میزونو نه واپس شوی وو ، هغه

یې ونیغل شروع کړل ...

او ما د ځان سره او وے :

« خدایه ! چه دا ورځے دِ راته نه وے ښائلے ـــ چه

او دِ ښائلے ، نو اوس د ا زمکه اوچوے چه مونږ پرے ننه ووځو

او یا ... یا .... یا ... څه ؟

چه څه دِ نړه غواړی او اونه وائیے

هغه تش بوت په دُنیا څله پائیے

٦ / ٢ / ٩٦

# که پښتون د وطن ورک شي هم پښتون دے

د ۱ د ۱۹۵۶ سنه خبره ده. زه د پښنور د روزنامه انجام (اخبار)
ایډیټر وم او د پاکستان د قومي اخبارونو د ایډیټرانو سره د
مشرقي پاکستان (اوس بنګله دیش) په دوره تللے وم. هلته د کاکس بازار
نه د برما د سرحد په لور د بدهه مذهب د یو تاریخي مقدس مقام
کتلو ته روان شو. په لاره کښې یو کلے او د هغے بازار راتلو. موټر
هلته د موټرونو نه کوز شو او پیاده بازار کښې روان شو چه بازار
خلک او د دے ځایه زور او نوے تمدن اوګورو. چه منځ بازار ته
اورسیدو، نو زمونږ شا ته یو سړے نعرے وهي « خان - خان
اودریږه ». ما چه اوکتل نو د هغه کلي په روایتي جامو کښې
یو خیرن، خچن سړے مونږ پسے په منډه را روان دے او نعرے
وهي. چه مونږ ته را ورسید و نو ما ته یې وایئ « خان! ته پښتون
یې »، ما جواب ورکړو « هو شکر دے چه پښتون یم ». د دے
سړي اوو ټیل چه زه په دُکان ناست وم چه دیرش کاله پس را

دوطن جامه او خم څادر اولیدو، سترګے م دربانده خوږے او زړه باغ باغ شو نو بے اختیاره را پاڅیدم او را منډه م کړه چه دومره موده پس یو پښتون روور سره خبرے اوکړم.

مونږ دده سره اودریدو او د هرڅه نه اول ئے زر زر په سلیپ و سلیپ و مونږ سره خپل تعارف اوکړو او بیا ئے په منت زارئ بلکه په زور خپل دُکان ته بوتلو. په منډه منډه ئے د بازار نه میوه دانه، خوانړه او شربتونه راوړل، په مونږ ئے په زور زور خوړل او څښکول او بیا راپورے اوښتو چه " ماسره کور ته لاړشئ چه چائے او ډوډۍ درته تیاره کړم ". خو مونږ سره وخت نه و نو اجازت مو ترے واخستو. البته هغه زمونږ مهماندار (میلمه پال) افسر ئے رضا کړو چه واپس په دے لار راځو نو ده سره به ډوډۍ خورو.

دده سړی نوم بهادر وو. دلته په کان (خان) مشهور وو. ده وئیل چه د مردان د سدوم علاقے او سیدونکے دے. چه هلک وو نو دکلی نه راورک شوے دے، کلکته او بیا چټاګانګ کښے ئے مزدوری کوله. بیا د یو قصاب سره نوکر شو، قصابی ئے زده کړه او اوس دلته دد ے ځائے بلډهانو (دبدهه مذهب منونکو) راوستے دے، هغوئی ته حلاله کوی او ښه پیسے ګټی، ښه ژوند او ډیر عزّت ئے د ے، دلته ئے واده کړے دے، دهغه نه ئے

دوه لونه ژوندئ دی، یو ه لور او دوه ځامن یې مړه دی. کلے
وطن یې یاد یږی، خو نه چې ته وطن ته تللے دے، نه تلے شې. و ائ
چه زړه م وېرېږی خو خاوره به م د دے ځاے وی نو دا وطن م واپس
تللو ته نه پرېږدی. تر دے چه خط مط هم چا ته نه لیکم - او
چا ته او لیکم، زما روستو څوک دی؟ دا یې او وئیل او یو لوے
اسویلے یې اوکړو.

چه مونږ د بده مذهب آثار قدیمه او متبرک مقامات
اوکتل او واپس شو، نو بهادر دخپل ډکان مخکښې خپلے زړ ے
ورستے شلیدلے وطنی جامې آغوستے، د څادر نه پټکے وهلے سنه
ایغ نیغ ولاړ دے. څلور پېنځه بدهان هم ورسره زمونږ د سنه
چارې دپاره راغلی دی. د رسیدو سره یې مونږ کور ته روان
کړو چه کور ته یې اورسیدو، نو یو د هغه بدهئ سنځه (پتوس
مو اونه کړو چه هغه شان یه بده مذهب وه، که مسلمانه شوے وه)
او دوه جینکئ یو د څوارلس [۱۴] کلنه او بله دولس [۱۲] کلنه، خو دسترکو
او یو زړے، غنم رنگے څهرے او لږ دنګ لښته قد نه یرته هرڅه
یې د بدهانو د هغه کلی وو. دیوے نوم یښم دره (یښم داره)
او دبلے سپوږ مته (سپوږ مئ) وه، زمونږ استقبال ته ولاړ ے
وے.

کان (خان) یار خپله خانی برابره کړې وه. دلرګو او بانسونو

دخالي او څېر په شان کور ، خو ډېر صفا ستهره ، ښکلي ، په سازو سامان ډک یې په رنګینه کېږو ښائسته کړے و . دکور کې په وړاندے دکیلو او بانسونو د باغ په منځ کښے د یو تالا بګي په غاړه یې د لرګو کرسۍ ایښې وے ، دکلي او علاقے ټولو ښینت پنځو سے مشرانو یے رابللي وو . یو عجیبه مزندے ړولګے شان او دَ بانس تورُی یا سرنا غوندے ساز او سامان یے هم راوړي وو .

چه مونږ اورسید و ، تو لکه چه کان اشاره وکړه ، ټول احترام ته پاڅیدل ، بیا چا به سینه لاس کینبول ، چا دواړه لاسونه جوخت د یو زے په سمې ترتندی اونیؤل ، چا هسے لاسونه سر یا تندی ته یوړل ، لکه چه دا ټول زمونږ په رواج نه پوهیږی ، خو ز مونږ د احترام دپاره په خپل خیال ز مونږ په طریقه مونږ ته سلام کوی یا هرکلے وائي . مونږ هم د دوی احترام په یو شان یا بل شان اوکړو او بیا ټول کښیناستو ، او د کښیناستو سره سم ساز شروع شو او د ساز سره سمے اوُوه جینکۍ په یو شان ساړ وکښے دکوټے نه راووتلے او په ګډا شوے ، دا سے ګډا چه ترا وسه ځوک د دا نس نوم واخلي نو ز ما هغه ښکلے او خوندناکه تماشه را یاده شي . دا جینکۍ دکلي د سردار دکور وے ، هغه خپله هم ناست و او دوئي یې هم د کان د میلمنو د عزت د پاره راوستے وے ، لکه چه دا د دوی دستور و او د سردار د معتبرۍ نخښه وه .

دکاآن د میلمستیا به درته څه اووایم چه په دے علاقه کښے څه خوراکو نه کیدے شول، هغه یئے تیار کړی وو او پلاؤ هم پوخ وو، خو نوم یئے د پلاؤ و، نو ورېږے او غوښے وے، ممن چه د کب غوښه هم پکښے وه، خو دکاآن د خوشحالئ د پاره مو ورته پلاؤ ووے، ولے پلاؤ نه وو بل څه شے و. دښتیا خبره ده چه د هغه ملک شاهی دسترخوان معلومیدو، ولے د دے هرڅه نه زیات دکاآن مستی، خوشحالی او په لستوڼو کلګه پلو ته موچه کتل نو موږ وئیل چه د اسرے به پاتے نه شی، د خوشحالئ نه به اوچوی. دغه شان یئے ښځه هم خوشحاله خوشحاله کیده او لونړه هم، لکه د پلار د خوشحالئ نه جامو کښے نه ځائیدے. دواړه به بیا بیا موږ ته رانزدے شوے او پښتو کښے به یئے راسره خبرے کوئے، خو پښتو یئے داسے وئیله لکه د پلار په ژبه اوخوله نه وائئ، د مور وائی، الفاظ زیات د پښتو خو لهجه او تلفظ د بُدهئ.

آخر دَخان میلمستیا نه اختر ختم شو او موږ راروان شو. د روانید و وخت کښے هغه یوه لحظه دواړو لونړو ته اوکتل او بیا یئے په ړدړدک، آواز ما ته اووے «ماسره نور هیڅ غم نشته خو دا یو نُول مِ زړه خوری چه دالونړه مِ پیغلے شوے، د دوئ سره به څه کوم؟ دلته خو په ټوله علاقه کښے ماته پښتون نه ښکاری

نو دوئ به چاته ورکوم ،، ددے ارمان جواب یۓ ماسره نه و البته دده پښتنۍ ژړیے چه زما په زړه کښے کوم زخم اولګولو دهغے ژورتیا دردم دغلته ډیر په تکلیف برداشت کړو ، اوچه دوورځے پس د سیل په پروګرام د کهلنا ښار ته اورسیدو او هلته م دهغه ځایۓ دپښتنو څوکیداړانو، چابړی فروشو او مزدورانو مشر د بابوزو شمروزو خان بالی اولیدو دهغه دپښتو، بهادرئ او زورنه خبرشوم ( دده قیصه به خپل وار وشي ) نو هغه ته م د کاڼ، دهغه پښتنی ارمان او دهغه دلونړو ذکر اوکړو او ورته م اووے چه ستا دپښتو او مړانے قیصے خوم په کهلنا کښے واوریدے خود اپښتو هم اوکړه چه د کاڼ لونړو ته پښتون پیدا کړه .

زمونږ ددے دورے نه دیارلس څوارلس کاله پس زه د نیشنل عوامی پارټئ دکتر سکتر په حیث دبنګال (اوس بنګله دیش) په دوره لاړم اوکهلنا ته هم اورسیدم ، اتفاق کوریځ زمونږ دهغه ښار صدر ( غالبًا) مکرچي نوم یۓ وو، سره یو پښتون ډرائیور و ، ما چه دهغه سره خبرے وکړے ،نو د هغه پلار هم په کچه ځوانئ کښے مزدورئ پسے یوټهیکدار سره کهلنا ته راغلے و اودا ډرائیور چه نوم یۓ ګلشن و ،هلته پیدا شوے و اوهلته لوے شوۓ دمکرجي دپلار سره په بند رګاه کښے نوکرو ،اوس دده سره ډرائیور و

ولے دا ډرائیوری د هغه دوینا مطابق هغه د دے کور نه سره د نمک حلالئ په وجه کوله ، ګنی په هغه د خدائے فضل و ، پیسے یے ګټلے وے . درے موټرونه یے په کرایه چلیدل - اوس یے یو موټر لانچ اجاره کړے وو اوبینک کښے یے جمع هم وه . ما دګلشن نه دخان بالی تپوس اوکړو هغه اوو ئیل چه هغه خو زمونږ خان دے او زما محسن دے ، خو نن صبا یے یو څلور کسان بازار کښے په چاقو وهلی دي ، هغوی هسپتال کښے دی اود خپله چرته پټ دے ، څو ورځو کښے به افسران رضا کړی او راپیدا به شي.

زه دخان بالی په نه لیدو خوخفه شوم ، ولے په دے خبره خوشحال شوم چه هغه دکاکس بازار د هغه پښتون کان لونړ وته زما په وینا دوه پښتانه پیدا کړی وو او هغه یے رضا کړے و او خوشحال کړے و او لونړه یے دغه پښتنو ته ورکړے وے . دا تفاق خبره داوه چه هغه دوه پښتنو کښے یو دے ګلشن ورور و او بل د چخرزو یوسفزے پښتون و .

ماچه دا واوریدل نو دیر خوشحال شوم او دګلشن نه م دکان او د هغه دلونړو تپوس ونه اوکړل . ما ته معلومه شوه چه کان مړ دے ، سنځه یے بوډۍ په خپل کور ناسته ده جائید اد ساتی . بیشم دره دخاوندسره دکاکس بازار کښے اوسیده خو په روحی اولاد

کښې مړه شوه او سپوږمۍ د ده دوور سره د کهلنا په کاغذ کارخانه کښې کارکوي، د هغه سره ده او ښې پیسې یې ګټلې دي، خوشحال ژوند تیروي. اوس دے دواړو دونړو فیصله کړې ده چه بلندخان (د هغه رور) د ښځې سره وطن ته ځي او هلته کورجوړوي او ټولے علاقې ته به د دوئي دودونو دوړې ورکوي.

ما ته چه ګلشن داقیصے کوئلے او دے ځائي ته راغے چه "کور به جوړ کړو" او "د ودونو دوړې به وکړو" نو د فخر نه یې ختې نیغ او بدن راښکلے شو او داسے حیرت کښې شو لکه چه د مکرچې دراتیور نه وي، د سیالانو سیال او دخانانو خان وي او بیا یې اووئیل چه "زما پلار د کلي نه په دے ارمان رارووان شوے و چه کلکته کښې به مزدوري کوم، پیسے به ګټم، دولت به جمع کوم، بیا به وطن ته راځم او خپل کور به جوړوم" خو هغه مړ شو او ارمان یې پوره نشو. اوس به مونږ دواړه رونړه د خدائے فضل دے د مړه پلار ارمان پوره کوُلے شو او د هغه ههوکی به قبر کښې خوشحالوُلے شو."

دلته ما تپوس اوکړو "او سپوږمۍ؟" هغه جواب راکړو "هغه هم د بلند لالا سره روانه ده، د خپل پلار نیکه وطن او به به اوګنبکي"

او ما ووئیل د وطن نه د غریبۍ د لاسه په ډیرو ارمانونو

ورکه وینه به دخپل کور کلی خاورے ته او رسی . او ربنتیا خبره ده چه پښتون دخپل وطن نه ورکیدے شي ، خو د وطن مینه دهغه د وینے نه ورکیدے نشي ـ

زما به خپل وطن یاد یږی

که د جنت په منارو ولاړه یمه

۲۰/۱/۹۵